## د قطنی فقراتو ناحیوی اوصاف Lumber Vertebra

د جسامت له لحاظه دا غټ دی.

1: Vertebral Body: د پښتورګي Kidney په شان شکل لری. او Costal Facet نه لری.

2: Vertebral Foramen: د متساوی الاضلاع مثلث Triangular په شان شکل لری.

3: د هر Transvers Process د قاعدوی په خلف کی یوه بارزه د Accessory Process په نوم لری.

4: Spinous Process: د څلور ضلعی Rectangular په شان دی او مستقیماً خلف خواته متوجه دی.

5: Articular Process: د Transvers Process په خلف کی قرار لری. د Sup Articular process انسی برخه یی د یوطولانی میزابی شکل لری د همدی بارزی په وحشی برخه کی ددی بارزی د خلفی کنار په امتداد یوه بله بارزه د Mamilary Process په نوم وجود لری.

## د Cervical فقراتو خصوصی اوصاف

د Cervical فقراتو له جملی څخه اوله First، دویمه Second، شپږمه Sixth، اوومه Seventh رقبی یا Cervical فقره نظر نورو فقراتو ته ځنی ځانګړتیاوی لری چی موږ یی پورته څلور Cervical فقرات په جدا توګه مطالعه کوو.

## 1: Cervical= Atlas

دا فقره Body نه لری او همدرانګه Spinous process هم نه لری. ددی فقری Vertebral Foramen د نورو Cervical فقراتو په تناسب ډیر پراخه دی نوموړی فقره یو قدامی او یو خلفی قوس لری او دوه جنبی کتلی لری چی د Superior Articular surface او Inferior Articular surface څخه عبارت دی.

په Superior مفصلی برخه کی د مربوطه Occipital Condyle سره د مفصل کیدو په نتیجه کی د Atlantooccipital Joint جوړوی وجود لری. او په Inferior مفصلی برخه کی د Axis فقری د Superior مفصلی سطحی سره د مفصل کیدو په نتیجه کی Atlantoaxial Joint جوړوی وجود لری. همدرانګه دوه Tubercle لری چی د Anterior Tubercle او Posterior Tubercle څخه عبارت دی.




Atlas (C1): superior view




Atlas (C1): inferior view

# 2: Cervical= Axis

1: Vertebral Body: د فقری د جسم علوی وجهی نه د Dens Axis په نوم بارزه نشست کوی.

2: Vertebral Arch: د Vertebral arch د Pedicle برخه یی ژوره د Inferior Vertebral Notch درلودونکی ده پداسی حال کی چی Superior Vertebral Notch نه لری.

شپږمه Cervical فقره : ددی فقری عرضانی بارزی Transvers Process قدامی توبرکل د نورو Cervical فقراتو د عرضانی بارزو قدامی توبرکلو په تناسب غټ او ضخیم دی.

اوومه Cervical فقره: ددی فقری Spinous Process منشعب یا Bifid نه دی.




Axis (C2): anterior view




Axis (C2): posterosuperior view

## د صدری فقراتو خصوصی اوصاف Thoracic Vertebra

په دی فقراتو کی اوله، نهمه، لسمه، یوولسمه او دولسمه فقری شاملی دی.

اوله Thoracic فقره: د اولی صدری فقری جسم د Cervical فقراتو د جسمونو په شان شکل لری. ددی فقری Sup Costal Facet مکمل او غټ دی. او Inf Costal Facet یې Demi facet دی.

نهمه Thoracic فقره : دغه فقره Inf Costal Facet نه لری. او جسم یی یواځی Sup Costal Demi facet دی.

لسمه Thoracic فقره: ددغی فقری جسم مکمل Facet لری او Transvers costal facet هم لری.

یوولسمه Thoracic فقره: ددغی فقری جسم هم مکمل Facet لری خو دا فقره Transvers costal Facet نه لری.

دولسمه Thoracic فقره: ددغی فقری جسم مکمل Costal Facet لری، Transvers Costal Facet نه لری او د Lumber د ناحیی د فقرو په شان ده.

## د قطنی فقراتو ناحیوی اوصاف Lumber Vertebrae Specific Feature

په قطنی ناحیه کی ځینی داسی فقرات وجود لری چی د قطنی ناحیی د نورو فقراتو سره د ساختمان له نظره لږ څه فرق لری چی پدی فقراتو کی اوله او پنځمه Lumber فقرات شامل دی. چی اوله قطنی فقره کی Transvers Process د نورو قطنی فقراتو د بارزو په شان نشوء نما ندی کړی او پنځمه قطنی فقره کی د فقری د جسم ارتفاع په قدام کی د خلف په نسبت زیاته ده.

## د عاجزی (Sacral) ناحی فقرات

په عجزی ناحیه کی یو هډوکی چی له پنځه فقراتو څخه تشکیل شوی وجود لری دغه هډوکی د سکروم په نوم یادیږی.

# Sacrum

***Location: Postero sup of Bony Pelvis***

***Type: Flat large Bone- Triangular in ship***




## د Sacrum هډوکی

نوموړی هډوکی د پنځه دانو فقراتو د یوځای کیدو په نتیجه کی منځ ته راغلی دی د حوصیلی په خلفی جدار کی موقیعت لری. شکل یی د اوږدو هموارو او د Triangular شکل درلودونکی دی نوموړی هډوکی یوه قاعده یا Base لری چی پورته قرار لری او Apex یا زروه لری چی لاندی دری سطحی یا Surfaces لری. Anterior surface یی بنویه او Concave ده څلور Transvers lines لری او اته دانی Foramen لری چی د Ant sacral Foramen ورته وایی. Posterior Surface یی ځیګ غیری منظم او Convex دی او Crest لری چی یو یی Median sacral crest دی په منځ کی قرار لری او دوه دانی چپ او ښی Sacral Lateral Crest لری . او د Median او Lateral sacral crest په منځ کی یو بل Crest موجود دی چی د Intermediate Sacral Crest په نوم یادیږی.

او دوه دانی Lateral Surfaces لری. دغه سطحه یی په دوه برخو ویشل شوی ده چی یو یی Upper part دی چی دوه برخی لری یوه یی Articular ده چی د Auricular Surface of sacrum په نوم یادیږی او بل یی Non Articular ده چی د Sacral Tuberosity په نوم یادیږی.  او بله برخه په Lateral Surfaces کی Lower Part دی چی Border ورته وایی.



## د Coccygeus هډوکی

یو مثلثی ډوله هډوکی دی چی د څلورو څخه تر شپږو پوری فقرات لری او د سکروم هډوکی لاندی موقعیت لری نوموړی هډوکی دوه سطحی یا وجهی لری چی قدامی او خلفی یا Ant او Post دی. او همدارنګه دوه کناړونه لری چی ښی او چپ دی یوه قاعده یا Base لری چی پورته قرار لری او یوه زروه یا Apex چی ښکته قرار لری. د قاعدی په دواړه خواو کی یوه یوه بارزه د Coccygeal Process په نوم چی د سکروم هډوکی له مربوطه Sacral horn سره مفصل کیږی.




*Abnormal: Scoliosis Lateral Curvatures*

## د ستون فقرات بیرونی منظره:

د ستون فقرات بیرونی منظره پدی ډول ده چی په عمومی ډول څلور سطحی لری او څلور انحناګانی لری. د انحناوو له جملی د رقبی ناحیی د انحنا محدبیت په قدام کی د صدری ناحیی د انحنا محدبیت یی په خلف کی د قطنی ناحیی د انحنا له جملی قدامی

وجه یی د فقراتو د جسمونو له یوځای کیدو نه چی منځ کی یی بین الفقری ډسکونه موقیعت لری تشکیل شوی دی. خلفی وجه یی د متوسط خط په سر یو تیغه مانند

ساختمان د **Vertebral crest** پنوم چې د فقراتو د **Spinous process** له یوځای کیدو څخه منځ ته راځی او ددی تیغی دواړه خواوته یوه طولانی میزابه د **Vertebral grove** پنوم قرار لری. د ستون فقرات په وحشی وجهو کی دا لاندی ساختمانونه شامل دی. **Transvers process, Pedicle, Intervertebral foramen**




## د سټرنوم هډوکی Sternum

د شکل له مخی د هموارو اوږدو هډوکو څخه شمیرل کیږی د توری سره مشابه جوړښت لری. د متوسط خط دپاسه د صدر په قدام کی موقیعت لری دا هډوکی د دری برخو لرونکی دی چې پورتنی برخه یی **Manubrium Sterni** ده ، منځنی برخه یی **Body** او ښکتنی برخه یی د **Xiphiod process** څخه عبارت دی.

**1: Manubrium Sterni:** دا برخه ډېره ضخیمه او ډیره قوی ترینه برخه د سترنوم د هډوکی ده. د سترنوم هډوکی دا برخه څلور ضلعی ته ورته شکل لری چی دوه سطحی یا Surfaces لری قدامی او خلفی او څلور کناورنه یا Borders لری

چی علوی، سفلی او دوه جنبی دی. د علوی کنار په متوسطه برخه کی یو ژوروالی د Suprasternal Notch یا Jugular notch په نوم او ددی ژوروالی دواړه خواته د Clavicular Notches په نوم ساختمانونه لیدل کیږی. سفلی کنار یی د هډوکی له جسم سره یو زاویه د Sternal angle په نوم جوړوی اود وحشی کنارو په پورتنیو برخو کی یی د Costal Notches په نوم ساختمانونه د مربوطه اولی پښتی له سر سره د مفصل کیدو لپاره او د ښکتنی قسمتو په دواړو خواو کی Articular demificates لری چی هر یو یی له مربوطه د دوهمی پښتی له سر سره مفصل کیږی.

**2: Body:** د سترنوم هډوکی جسم دوه وجهی قدامی او خلفی، دوه نهایتونه علوی او سفلی او دوه کناورنه ښی او چپ لری د هډوکی کناورنه په پورتنیو برخو کی د دوهمو ضلعو سره د مفصل کیدو لپاره Demificates او په سفلی برخو کی د اوومو ضلعو سره د مفصل کیدو په خاطر Demificates لری پداسی حال کی چی د کنارو نوموړی برخی یی د دریمو، څلورمو، پنځمو او شپږمو ضلعو سره د مفصل کیدو په خاطر Costal Notches لری علوی نهایت یی د Manubrium Sterni سره او سفلی نهایت یی د Xiphiod process سره اتصال لری.






# Ribs = Costae

## پښتۍ

هموار اوږده هډوکی دی چې د سینې د صندوقچې په جوړیدو کې له صدری فقراتو او سټرنوم هډوکی سره رول لری په عمومی ډول پښتی د دوه برخو لرونکی دی چې یوه یې هډوکینه او بله یې عضروفی برخه ده د پښتیو تعداد په هره خوا کې دولس عددہ دی په عمومی ډول پښتی په دری ګروپونو ویشل شوی دی چې په لاندی ډول دی.

### 1: حقیقی پښتی (True Ribs)

دغه پښتي هره خوا کی د یو څخه تر اووه پښتیو پوری حسابیږی دا پښتی د سټرنوم له هډوکی سره خپلی عضروفی برخی په واسطه مفصل کیږی. دی پښتیو ته **Vertebrosternal Ribs** هم وایی.

### 2: کاذبی پښتی (False Ribs)

په دی ګروپ پښتیو کی اتمه، نهمه او لسمه پښتی شاملی دی دا پښتی د خپلو عضروفی برخو په واسطه راسآ د سټرنوم هډوکی سره نه مفصل کیږی. دی پښتیو ته **Vertebrochondral Ribs** هم وایی.

### 3: شناوری پښتي (Flooting Ribs)

په دی ګروپ پښتیو کی یولسمه او دولسمه پښتی شاملی دی ددی پښتیو قدامی نهایتونه ازاد دی او د سټرنوم له هډوکی سره نه مفصل کیږی. دی پښتیو ته **Vertebral Ribs** هم وایی.

د دریمی څخه تر نهمی پتبني پوری **Typical Ribs** دی. او اولنی دوه او اخیرنی دری دانی پښتی **Atypical Ribs** دی.

په **Atypical Ribs** کی اولنی همواره ده او دوه سطحی لری چی **Sup Surface** او د **Inf Surface** څخه عبارت ده او دوه کنارونه یا **Borders** لری چی **Outer** او **Inner** دی. او دوهمه پښتی دوه چنده اوږدوالی لری په نسبت د ولی.

لسمه پښتی د سر په برخه کی یو **Single Facet** لری. په یوولسمه پښتی کی **Costal Grove** شته خو ښکاره نه دی. او په دولسمه پښتی کی **Costal grove** نشته.












## دGeneral Feature of ribs پښتيو عمومی اوصاف

### هره پښتی يو جسم او دوه نهايته لری:

**1: خلفی نهايت:** د پښتيو په خلفی نهايت کی لاندی ساختمانونه شامل دی.

**a: Head:** د هری پښتی د خلفی نهايت د سر برخه د يوی مفصلی سطحی لرونکی ده چی د يوی تيغی په واسطه په دوو برخو ويشل کيږی دغه دواړه وړی مفصلی سطحی په ترتيب سره د ستون فقرات د صدری فقراتو له جملی د پورتنی او ښکتنی صدری فقراتو له Sup/Inf Costal facets سره او د کرست برخه يی د مربوطه Intervertebral disk سره اتصال لری.

**b: د غاړی برخه**

**c: Costal Tubercle:** د هری پښتی Costal tubercle د يوی مفصلی سطحی لرونکی دی چی د مربوطه Transvers process له Costal facet سره مفصل کيږی.

### 2: د پښتيو جسم:

جسم يی دوه سطحی يا Surfaces لری چی د داخلی او خارجی په نوم ياديږی. او دوه کنارونه يا Borders لری چی علوی او سفلی دی. د جسم د داخلی سطحی په ښکتنی قسمت کی يوه ميزابه لری چی په نوموړی ميزابه کی له پورته نه ښکته خواته په ترتيب سره اول بين الضلعی وريد بيا بين الضلعی شريان او په اخر کی بين الضلعی عصب سير لری.

### 3: د پښتيو قدامی نهايت:

د پښتي قدامی نهايت د عضروفی برخی په واسطه د سترنوم له هډوکی سره اتصال لری.

# Thorax (Thoracic Cavity)

د بدن هغه برخه ده چې د بطن او غاړې ترمنځ واقع ده.




## د سینې د صندوقچې عمومي اوصاف

نوموړې صندوقچه درې سطحې لرې چې قدامي وجه، خلفي وجه او دوه جنبي وجهي دي او دوه فوهې لري یوه دخولي فوهه Thoracic Inlet او بله يې خروجي فوهه Thoracic Outlet ده.

د سینې د صندوقچې دخولي فوهه چې مستعرض قطر یې 10cm او قدامي خلفي قطر یې په متوسطه برخه کې 6cm دی حدود یې په لاندې ډول دي. په قدام کې د Manubrium Sterni علوي کنار، په خلف کې د اولي صدري فقرې د جسم پورتنی مخ او په دواړه خواکې د اولنيو ضلعو په واسطه احاطه کیږي. د سینې د صندوقچې خروجي فوهه د حجاب حاجز په واسطه پوښل شوی مستعرض قطر يې په وسط کې 12cm دی ددې فوهې حدود په لاندې ډول دي. په قدام کې د Xiphiod process ، په خلف کې د دولسمې صدري فقرې د جسم سفلي وجه او دواړه خواو کې د شپږو اخري پښتيو په واسطه.

د سینی د صندوقچی قدامی وجهی وسطی قسمت یی د سترنوم هډوکی په واسطه او دوارړه خواوی یی د اضلاعو د عضروفی برخو په واسطه جوړیږی چی ددا وجه په هره خوا کی د ښښتیو تر Ant. costal angle پوری امتداد لری.

د سینی د صندوقچی خلفی وجه په متوسطه برخه کی د 12 عدده صدری فقراتو او په دوارړه خواو کی د اضلاعو خلفی نهایتونه قرار لری چی ددا وجه په هره خوا کی د ښښتیو تر Post. Costal angle پوری امتداد لری.

د سینی د صندوقچی وحشی وجه په هره خوا کی د ښښتیو د Ant. costal angle او Post. Costal angle ترمنځ ساحه په بر کی نیسی.





**Anterior view**

Scapula
Acromion
Coracoid process
Glenoid cavity
Neck
Suprascapular notch
Subscapular fossa
Clavicle
True ribs (1–7)
Costal cartilages
False ribs (8–12)
Jugular notch
Sternum
Manubrium
Angle
Body
Xiphoid process
Floating ribs (11–12)
1
2
3
4
5
6
7
8
9
10
11
12

**Posterior view**

Rib
Head
Neck
Tubercle
Angle
Body
Floating ribs (11–12)
Clavicle
Scapula
Acromion
Supraspinous fossa
Spine
Infraspinous fossa
True ribs (1–7)
False ribs (8–12)
1
2
3
4
5
6
7
8
9
10
11
12



# Boney Pelvis

حوصیله په قدام او وحشی برخو کی د کوکسی هډوکو او خلف کی د سکروم او کوکسیجیوس هډوکو په واسطه جوړ شوی دی. حوصیله یوه خارجی سطحه او یوه داخلی سطحه او یوه علوی فوهه او یوه سفلی فوهه لری.

## د حوصیلی بهرنی سطحه:

د قدام څخه که د حوصیلی خارجی سطحه ولیدل شی د متوسط خط په سر Symphysis pubis دواړو خواوو کی د Pubic د هډوکی جسم او دواړه شاخونه علوی او سفلی او د Obturator Foramen قدامی برخی د لیدلو وړ ده.

که د جنب نه ولیدل شی نو له پورته نه لاندی خواته پکی لاندی ساختمانونه لیدل کیږی.

1: *Gluteal surface for ilium*

2: *Acetabulum*

3: *Ischial Tuberosity*

4: *Post part of obturator foramen*

5: *Ischial ramus*

او که له خلف څخه ولیدل شی نو د سکروم او کوکسیجیوس هډوکو بهرنی برخی په کی لیدل کیږی.

## د حوصیلی داخلی سطحه:

د حوصیلی داخلی سطحه د یو دایروی خط له مخی په دوه برخو ویشل کیږی هغه برخه چی له دی خط څخه پورته قرار ولری د Greater pelvis یا False pelvis په نوم او هغه برخه چی ددی خط څخه لاندی قرار ولری د Lesser pelvis یا True pelvis په نوم یادیږی.

دغه خط په قدام کی د **Symphysis pubis** د علوی څنډی په دواړو خواو کی د **Pubic crest** او **Arcuate lines** په واسطه او په خلف کی د **Sacral promontory** او **Lateral mases** د قدامی څنډو په واسطه جوړیږی.

## د حوصیلی دخولی سطحه:

نوموړی فوهه یا سطحه په قدام کی د **Pubic symphysis** د علوی کنار په دواړو خواو کی د کوکسی د هډوکو د قدامی کنارو په علوی کی د ښی او چپ **Iliac crest** او په خلف کی د سکروم هډوکی د ښی او چپ **Lateral mass** د خلفی کنارو په واسطه احاطه کیږی.





## Difference Between female and male pelvis

- *Pelvic wall deli cater in female then male.*
- *Concavity of sacrum and Coccygeus is more than that of male.*
- *True pelvis is larger in female.*
- *Obturator foramen is triangular and smaller in female while in male it elliptical.*
- *Inlet is larger in female.*

د نارینه او ښځینه د حوصیلو ترمنځ توپیرونه

- د ښځو د حوصیلی جدارونه نظر نارینه وو ته نازک وی.
- د سکروم او کوکسیجیوس هډوکو قدامی مقعریت په ښځو کی نظر نرانو ته زیات وی.
- کوچنی حوصیله په ښځو کی د نرانو په نسبت پراخه وی.
- Obturator foramen په ښځو کی مثلثی او په نرانو کی بیضوی وی.
- په ښځو کی د حوصیلی علوی فوهه د نرانو په نسبت پراخه وی.



# 5th chapter

# Skull

**Frontal bone**
Glabella
Supra-orbital notch (foramen)
Orbital surface
**Nasal bone**
**Lacrimal bone**
**Zygomatic bone**
Frontal process
Orbital surface
Temporal process
Zygomaticofacial foramen
**Maxilla**
Zygomatic process
Orbital surface
Infra-orbital foramen
Frontal process
Alveolar process
Anterior nasal spine

Coronal suture
**Parietal bone**
**Nasion**
**Sphenoidal bone**
Lesser wing
Greater wing
**Temporal bone**
**Ethmoidal bone**
Orbital plate
Perpendicular plate
Middle nasal concha
**Inferior nasal concha**
**Vomer**
**Mandible**
Ramus
Body
Mental foramen
Mental tubercle
Mental protuberance

**Right orbit: frontal and slightly lateral view**

Orbital surface of frontal bone
Orbital surface of lesser wing of sphenoidal bone
Superior orbital fissure
Optic canal (foramen)
Orbital surface of greater wing of sphenoidal bone
Orbital surface of zygomatic bone
Zygomaticofacial foramen
Inferior orbital fissure
Infra-orbital groove

Supra-orbital notch
Posterior and Anterior ethmoidal foramina
Orbital plate of ethmoidal bone
Lacrimal bone
Fossa for lacrimal sac
Orbital process of palatine bone
Orbital surface of maxilla
Infra-orbital foramen





# The Skull

The Skeleton of the head is known as skull.




## Frontal Bone

Location: Located in front of head

Type: Flat pneumatic bone






## د سر اسکلیټ

د سر هډوکي جمله 22 دانې دي خو ځينې يې 28 بنايې هغوی ورسره د غوږونو هډوکي هم شماري.

نو داد 22 هډوکي په دوه برخو ويشل کيږي چې اته دانې يې د کوپړې هډوکي او څوارلس دانې يې د مخ هډوکي دي. د کوپړې هډوکي په خپل منځ کي په دوه ګروپونو ويشل شوي دي چې طاق او جفت ورته وايي. طاق هډوکي يکې Frontal, Occipital, Ethmoid او Sphenoid دي. او جفت چې جوړه وي Parietal او Temporal دي چې ددې دواړو شمره دوه دوه عدده ده.

## د Frontal هډوکی

د Frontal هډوکي د کوپړې په قدامي قسمت کې اناتوميک موقيعت غوره کړي دي. دغه هډوکی د همواړو Pneumatic هډوکو له جملې څخه دی. د ساختمان له نظره نوموړی هډوکي دوه برخې چې عمودي او افقي دي لري، دوه وجهي يا سطحې لري خارجي او داخلي او همدرانګه دری کناړونه لري چې علوي، سفلي او خلفي دي.

### د هډوکي سطحې:

د هډوکي د عمودي قطعې په خارجي سطحه کې د متوسط خط دپاسه يوساختمان د Glabella په نوم وجود لري. ددی بارزې دواړو خواو ته د Super ciliary arches په نوم ساختمانونه ليدل کيږي چې د وريڅو لاندې قرار لري. د هډوکي عمودي قطعې داخلي سطحه چې مقعر شکل لري ددی قطعې په سفلي قسمت کې يو سوری د Foramen cecum په نوم او ددی څخه لږ پورته يو تيغه مانند ساختمان د Frontal crest په نوم ياديږي.

د هډوکي افقي سطحې د متوسطه خط په سر د Ethmoidal notch په نوم ساختمان لري. د Ethmoidal notch په قدام کې د افقي قطعې په خارجي برخه کې

**Nasal part** په نوم ساختمان لیدل کیږی چی د پوزی د چت په جوړولو کی برخه اخلی. د **Ethmoidal notch** په جوانبو کی د افقی قطعی د خارجی وجهی برخی د

**Orbital parts** په نوم یادیږی چی د مربوطه **Orbital cavity** د چت په جوړولو کی برخه اخلی.

## Borders

- *Superior Border superiorly articulating with parietal bone.*
- *Inferior Border Inferiorly articulating with Sphenoid. Inferior border located Between vertical and horizontal parts.*
- *Posterior Border at middle part have ethmoidal notch in which cribriform plate of ethmoidal bone located . Laterally it is articulating with sphenoid bone for this border is called sphenoid border.*

### د Frontal هډوکی کنارونه

**علوی کنار:** دا کنار دواړو **Parietal** هډوکو سره مفصل کیږی.

**سفلی کنار:** دا کنار یی په سفلی کی د **Sphenoid** هډوکی له **Greater wing** سره مفصل کیږی دغه کنار یی د افقی او عمودی قطعو اتصالی محل څخه عبارت دی.

**خلفی کنار:** دغه کنار یی په متوسطه برخه کی د **Ethmoidal notch** په نوم ساختمان درلودونکی دی. چی په هغی کی د **Ethmoid** هډوکی **Cribriform plate** موقیعت لری ددی **Notch** په دواړو خواو کی د هډوکی نوموړی کنار د **Sphenoid** هډوکی د مربوطه **Lesser wing** له قدامی کنار سره مفصل کیږی نو ځکه ورته د **Sphenoid Border** هم وایی.








(a) Superior view of the skull, calvaria removed

# Ethmoid Bone

**Ethmo= Sive** **oid= Same**

**Location: under the horizontal part of Frontal bone and in front of sphenoid Bone.**

**Type: Irregular pneumatic**

**Parts of ethmoid bone**




## *Cribriform plate*

***It quadrilateral in Shape as having Many pores so Called cribriform***

***Plate. Having two surfaces Sup and inf. Superior surface divided into right and left parts by crista gali. Inferior surface play in formation of nasal roofs.***

## *Vertical Plate*

***Vertical part take in formation of nasal septum.***

## *Ethmoidal labyrinth*

***An ethmoidal labyrinth is an irregular cuboidal bony mass located under lateral borders of cribriform plate between orbital and nasal cavities.***

***Each has six surfaces: Sup, Inf, Ant, Post, Med and lateral surface.***

- ***Medial surface take part in information of lat nasal wall there are shelf like projection termed as concha (Conchae)***
- ***Lateral surface Play in making up of med wall of orbital cavity.***





## د Ethmoid هډوکی

غیری منظم ترازو ته ورته نیوماتیک هډوکی دی. چی د کوپړی د قاعدی په قدامی قسمت کی د Sphenoid هډوکی په قدام او د Frontal هډوکی د افقی قطعی لاندی موقیعت لری.

د ساختمان له نظره نوموړی هډوکی څلور برخی لری. چی د Cribriform plate, Vertical plate او دوه جنبی کتلو څخه چی د Labyrinth په نوم یادیږی عبارت دی.

### د هډوکی Cribriform plate

د هډوکی Cribriform plate څلور ضلعی ته ورته شکل لری او په زیاته اندازه سوری لری چی د Olfactory Nerve الیاف د همدی سوریو له لاری Cranial cavity ته داخلیږی. د هډوکی دا برخه دوه سطحی علوی او سفلی لری. د Cribriform plate علوی سطحه د یوساختمان په واسطه چی Crista gali نومیږی په دوه برخو ښی او چپ ویشل کیږی. Crista gali په حقیقت کی د Vertical plate د علوی نهایت په امتداد د Cribriform plate له علوی سطحی پورته وتلی برخه ده. ددی قطعی سفلی سطحه د ښی او چپ Nasal Cavity د چت په جوړولو کی رول لری.

### د هډوکی Vertical plate

د هډوکی Vertical plate د پوزی د حجاب په جوړولو کی رول لری.

### د هډوکی Ethmoidal labyrinth

غیری منظمی مکعبی شکله هډوکینه کتلی دی چی هر یو یی د Cribriform plate د مربوطه جنبی کنار لاندی د Orbital cavity او Nasal Cavity ترمنځ موقیعت لری.

هریو یی ددی هډوکینو کتلو شپږ سطحی لری چی د علوی، سفلی، خلفی، قدامی، وحشی او انسی څخه عبارت دی.

انسی سطحه یی د پوزی د جوف د وحشی جدار په جوړیدو کی برخه اخلی دغه سطحه غیری منظنم شکل لری او هغه دا چی پدی سطحه کی دوه عدده هډوکینه بارزی د Superior Nasal Concha او Middle Nasal Concha په نوم وجود لری.

وحشی سطحه یی ډیره نازکه او همواره ده چی د Orbital cavity د انسی جدار په جوړیدو کی برخه اخلی.



(b) Anterior view

## Sphenoid

*Location: Behind frontal and ethmoid or in front of occipital and temporal.*

*Type: Irregular pneumatic bone and it is butterfly in shape.*

### Structure

Sphenoid has the following parts



Body    Greater wings    lesser wings    Pterygoid process

## Body of Sphenoid

*The Body of sphenoid is a centrally placed cube bone containing two sinuses and articulating anteriorly with the*

*vomer, ethmoid and palatine bone and posteriorly with occipital and posterolaterally with temporal bones.*

*It is cuboidal in shape have six surfaces: Sup, inf, ant, post and two lateral surfaces.*

*Superior surface*

- *Sellaturcica*
- *Hypophyseal fossa*
- *Tuberculum Sella*
- *Jugum Sella*
- *Sulcus chiasmatic*
- *Optic canals*
- *Dorsum Sella*
- *Clinoid process*
- *Ant and Post Clinoid process*

*Anterior surface*

*Ant surface articulate with ethmoid.*

*Posterior surface*

*Post surface articulate with occipital bone.*

*Inferior surface*

*take part in formation of Post part of nasal roof.*

## د Sphenoid هډوکی

دغه هډوکی د شکل له نظره غیری منظم نیوماتیک هډوکی دی چی شاپرک ته ورته شکل لری. او د کوپړی د قاعدی په متوسط قسمت کی د Frontal او Ethmoidal هډوکو شاته او د Occipital او Temporal هډوکو مخی ته موقیعت لری. د ساختمان له نظره هډوکی یو جسم دوه جوړي وزرونه

Greater and lesser wings او دوه بارزی د Pterygoid process په نوم لری. د هډوکی جسم شپږ سطحی لری چی په لاندی دول دی:

- **علوی سطحه:** د علوی سطحی په وسط کی د Hypophyseal fossa په نوم ساختمان قرار لری چی په نوموړی کنده یا خفره کی نخامیه غده موقیعت لری د نوموړی خفری په قدام کی یوه هډوکینه بارزه د

Tuberculum Sella په نوم او له دی بارزی قدامتر Jugum Sella قرار لری. ددی دواړو ساختمانو ترمنځ Sulcus chiasmatic قرار لری چی په هغی کی Chiasma optica موقیعت لری او ددی میزابی دواړو خواو ته یو یو سوری د optic canal په نوم چی د Optic nerve او Ophthalmic artery له هغه څخه تیریږی موقیعت لری. د Hypophyseal fossa په خلف کی یوه بله هډوکینه بارزه ده چی د Dorsum Sella په نوم یادیږی. د هډوکی د جسم د علوی وجهی د قدامی او خلفی برخو په هره خوا کی یوه یوه بارزه د Clinoid process په نوم وجود لری.

- **قدامی سطحه:** ددی سطحی په وسطی قسمت کی یوه هډوکینه تیغه د Sphenoid crest په نوم چی د Ethmoid هډوکی د Vertical plate له خلفی کنار سره مفصل کیږی وجود لری.
- **سفلی سطحه:** د هډوکی د جسم سفلی د پوزی د چت د خلفی قسمت په جوړیدو کی برخه اخلی.
- **خلفی سطحه:** خلفی سطحه یی د Occipital هډوکی له Basilar part سره مفصل کیږی.
- **جنبی سطحي:** د هری جنبي سطحي په علوی برخه کی یوه میزابه د Carotid sulcus په نوم لیدل کیږی.

## *Greater Wings of Sphenoid*

*Origination from posteroinferior part of body of sphenoid having two surfaces inner and outer. And two borders.*

*Inner surface at medial part has three foramens from ant to post respectively known as Foramen rotendum, Foramen oval or Foramen Spinosum.*

*Outer surface of greater wings divided into three parts.*

*Orbital surface taking part in formation lateral wall of orbital cavity.*

*Temporal surface taking part in formation of temporal fossa.*

*Maxillary surface.*

## *Greater Wings of Sphenoid*

دغه ساختمانونه د Sphenoid هډوکی د جسم له خلفی سفلی برخی څخه منشاء اخلی. د دوه سطحو درلودونکی دی چی داخل قحفی او خارج قحفی ورته وایی او د دوه کنارونو لرونکی دی. داخل قحفی وجه یی په انسی برخه کی له قدام نه خلف ته د دری سوریو لرونکی ده چی عبارت دی له:

a: Foramen Rotendum: له دی سوری څخه Maxillary nerve تیریږی.

b: Foramen oval: له دی سوری څخه Mandibular nerve تیریږی.

c: Foramen Spinous: له دی سوری څخه Medial meningeal artery تیریږی.

خارج قحفی وجه یی د دوه تیغو یعنی Crest په واسطه په دری برخو ویشل کیږی چی نوموړی سطحی عبارت دی له :

a: Orbital surface: مثلثی شکل لری او د Orbital cavity د وحشی جدار په جوړیدو کی برخه اخلی.

b: Temporal surface: د Temporal fossa په جوړیدو کی رول لری.

c: Maxillary surface: افقی شکل لری.

## *Borders of Greater wings*

*Medial Border has three segments.*

*Ant segment surrounding sup orbital fissure with post border of lesser wing.*

*Middle segment is middle part of greater wing.*

*Post segment med part of this making ant border of lace rum foramen.*

*And Lateral part articulating with petrous part of temporal bone.*

## *Lateral Border*

*Having three part:*

*Frontal margin articulating with frontal bone.*

*Parietal margin articulating with parietal bone.*

*Squamous margin articulating with squamous part of temporal bone.*

## د Greater wing کنارونه

د کنارو له جملی انسی کنار دری قطعی لری چی د قدامی، وسطی او خلفی قطعو څخه عبارت دی. د انسی کنار قدامی قطعه یی د Lesser wing د خلفی کنار سره

Superior orbital fissure احاطه کوی. وسطی قطعه یی د Greater wing له منځ څخه عبارت ده. او خلفی برخه یی چی خلف او وحشی ته متوجه ده. ددی قطعی انسی برخه د Lacerum foramen قدامی څنډه او وحشی برخه یی د Temporal هډوکی له Petrous part سره مفصل کیږی.

### وحشی کنار یی دری برخی لری:

a: Frontal margin: د Frontal هډوکی سره مفصل کیږی.

b: Parietal margin: د Parietal هډوکی سره مفصل کیږی.

c: Squamous margin: د Temporal هډوکی له Squamous part سره مفصل کیږی.

## *Lesser wings of Sphenoid*

*Originating from superoanterior Part of sphenoid bone.*

*Having two surfaces sup and inf. And two borders ant and post. Superior surface take part in formation of floor of ant*

*cranial fossa. and inf take part in formation of orbital cavity. Ant border at medial articulating with post border of cribriform plate of ethmoid and laterally with post border of frontal bone.*

*Post border is free and forming ant margin of superior orbital cavity.*

## Lesser wings of sphenoid

دا ساختمانونه په هره خوا کی د هډوکی د جسم له قدامی علوی برخی څخه منشاء اخلی. چی هر یو یی ددی ساختمانو دوه سطحی علوی او سفلی دی. او دوه کنارونه یا سرحده لری چی قدامی او خلفی دی. علوی سطحه یی د Anterior cranial fossa د سطحی جوړولو کی او سفلی سطحه یی د Orbital cavity د چت په

جوړولو کی برخه اخلی. د کنارو له جملی څخه یی قدامی کنار په انسی کی د Ethmoid هډوکی د Cribriform plate له خلفی کنار سره او په وحشی کی د Frontal هډوکی له خلفی کنار سره مفصل کیږی. خلفی کنار یی ازاد دی چه د Superior orbital fissure قدامی حدود جوړوی.

## Pterygoid Processes

*Extending from the junction of the body and the wings are the pterygoid process. Each Process consist of a narrow medial*

*Plate and border lateral plate separated by pterygoid fossa.*





***Each medial plate ends with a hook like projection called Hamulus.***






Sphenoidal bone
Greater wing
Frontal bone
Supra-orbital notch (foramen)
Glabella
Ethmoidal bone
Orbital plate
Lacrimal bone
Fossa for lacrimal sac
Nasal bone
Maxilla
Frontal process
Infra-orbital foramen
Anterior nasal spine
Alveolar process
Zygomatic bone
Zygomaticofacial foramen
Temporal process
Zygomatic arch

Parietal bone
Coronal suture
Pterion
Temporal fossa
Superior temporal line
Inferior temporal line

Temporal bone
Squamous part
Zygomatic process
Articular tubercle
Groove for posterior deep temporal artery
Supramastoid crest
External acoustic meatus
Mastoid process
Lambdoid suture
Occipital bone
Sutural (wormian) bone
External occipital protuberance (inion)
Asterion

Mandible
Head of condylar process
Mandibular notch
Coronoid process
Ramus
Oblique line
Body
Mental foramen

Infratemporal fossa exposed by removal of zygomatic arch and mandible*
Pterygomaxillary fissure
Inferior orbital fissure
Infratemporal surface of maxilla
Alveolar foramina
Tuberosity of maxilla

Sphenoidal bone
Greater wing
Infratemporal crest
Lateral plate of pterygoid process
Pterygoid hamulus (of medial plate of pterygoid process)
Foramen ovale
Temporal bone
External acoustic meatus
Mandibular fossa
Articular tubercle
Styloid process
Pterygopalatine fossa
Sphenopalatine foramen






View of lateral nasal wall with nasal septum removed

# Occipital

*Occipital derived occipitus means back.*

*Location: Back of Skull.*

*Type: Flat irregular bone.*

*Taking part in formation of cranial vault and base.*

*Structure: The occipital bone is divided into four part by a foramen known as Foramen magnum.*

- *Basilar part in front of foramen.*
- *Squamous part behind of foramen.*
- *Lateral part on each side of foramen.*

*Having two surfaces: Outer and inner surface.*

*Outer surface:*

- *Pharyngeal tubercle.*
- *Occipital condyles.*
- *External occipital protuberance.*
- *Sup nuchal line.*
- *Inf nuchal line.*
- *External occipital crest.*

*Inner surface:*

- *Clivus sulcus.*
- *Jugular tubercle.*
- *Internal occipital protuberance.*
- *Internal occipital crest.*





*Having four Borders:*

*Two superior border known as lambdoid borders.*

*Two inferior border known as temporal borders.*

*Having four Angles:*

*Superior angle at site of junction of Posterosuperior border of parietal bones and occipital.*

*Inferior angle at site of junction of occipital and sphenoid.*

*Lateral angles junction of temporal, parietal and occipital bones.*

## د Occipital هډوکی

دا هډوکی د Occipitus د کلیمی څخه اخستل شوی چی د شا په معنا دی.

دا هډوکی د هموارو غیری منظمو هډوکو له جملی څخه دی چی د کوپړی د قاعدی او قبی د خلفی برخو په جوړولو کی برخه اخلی. او موقیعت یی په Skull کی شاته واقع دی. د هډوکی ساختمان د یو سوری په واسطه چی Foramen magnum نومیږی په څلورو برخو ویشل شوی دی. د هډوکی هغه برخه چی د Foramen magnum په قدامی کی ده د Basilar part په نوم او کومه برخه یی چی په خلف کی ده دSquamous part په نوم او هغه برخي د هډوکی چی د Foramen magnum دواړو خواو ته قرار لری د Lateral parts په نوم یادیږی. نوموړی هډوکی دوه سطحی لری خارجی سطحه او داخلی سطحه.

### د هډوکی خارجی سطحه:

نوموړی سطحه د Basilar part په 1/3 خلفی برخه کی د Pharyngeal tubercle په نوم ساختمان او د Foramen magnum په دواړو خواو کی د Occipital condyles په نوم ساختمانونه لیدل کیږی، د هډوکی د Squamous part په خارجی سطحه کی یوه بارزه د Medline په استقامت قرار لری چی د

External occipital protuberance په نوم یادیږی، ددی بارزی دواړو خواو ته د Superior nuchal lines په نوم ساختمانونه او لدی څخه لاندی

Inferior nuchal lines لیدل کیږی، له External occipital protuberance څخه لاندی تر Foramen magnum پوری یوه هډوکینه تیغه د External occipital crestپه نوم د لیدلو وړه ده.

## دهډوکی داخلی سطحه:

د Basilar part په داخلی سطحه کی یوه پراخه میزابه د Clivus په نوم لیدل کیږی، د داخلو سطحو په قدامی برخه کی Jugular tubercle لیدل کیږی، د Squamous prat داخلی سطحه چی مقعر شکل لری ددی برخی د داخلی سطحی په وسط کی Internal occipital protuberance قرار لری، یوتیغه د Internal occipital crest په نوم عم قرار لری.

## د هډوکی کنارونه:

د Occipital هډوکی څلور کناره لری چی عبارت دی له دوه علوی کنارو Lambdoid borders (λ) او دوه سفلی کنارو Temporal borders څخه.

## د هډوکی زاویی یا Angles:

د Occipital هډوکی څلور زاوی لری چی عبارت دی له:

- Superior angle: د دواړو Parietal هډوکو خلفی علوی کنارو او Occipital هډوکی اتصالی محل له دی زاوی سره توافق کوی.
- Inferior angle: په سفلی کی د Occipital هډوکی د Basilar part او Sphenoid هډوکی اتصالی محل له دی زاوی سره توافق کوی.
- Lateral angle جنبی زاوی: په دواړو خواو کی د Parietal, temporal او Occipital هډوکو له اتصالی محل سره توافق کوی.


Internal
Sagittal Sulcus
Confuence of Sinuses
Transverse Sulcus
Cerebellar Fossae
Jugular Notch
Basilar Portion
Internal Occipital Crest
Inverted External
Hypoglossal Canal
Occipital Condyle
Foramen Magnum
Condyloid Canal
Inferior Nuchal Line
Superior Nuchal Line
External Occipital Protuberance


Lambdoid suture
Occipital bone
Groove for transverse sinus
External occipital protuberance (inion)
Jugular foramen
Groove for inferior petrosal sinus
Hypoglossal canal
Foramen magnum
Occipital condyle
Basilar part
ine bone

# Temporal bones

*It is an irregular bone located behind sphenoid, in front of occipital and under parietal bones.*

*Parts of temporal bone:*

- *Squamous part.*
- *Mastoid part.*
- *Petrous part.*
- *Tympanic part.*

*The squamous part:*

*Making up anterosuperoir of temporal bone. And divided into two parts: vertical part and horizontal part. Separated from each one by zygomatic process.*

*Having two surfaces: Outer and inner.*

*Outer surface has following structures:*

- *Zygomatic process.*
- *Middle temporal sulcus.*
- *Mandibular fossa-*
- *Articular tubercle.*

*Inner surface has several sulci.*

*The borders of squamous part it almost semicircular in shape.*

*The Mastoid part:*

*Located posteroinferior of temporal bone. Having two surfaces outer and inner. And a semicircular border.*

*Outer surface of mastoid part:*





Following structure are seen:

- External acoustic meatus.
- Mastoid process.

Inner surface of mastoid part: is a smooth surface.

- Mastoid foramen.
- Sigmoid sulcus.

The petrous part:

Located inferomedial to squamous part and superomedial to mastoid part, between occipital and sphenoid bones.

Petrous part+Tympanic part= Pyramidal part

Pyramidal part: Having three surfaces, Three borders, apex and base.

Surfaces of petrous part:

- Anterior surface forming post border of middle cranial fossa.

Petro squamous fissure located between inner surface of squamous part and ant surface of petrous part.

- Posterior surface Forming anterior border of posterior cranial fossa. Close to middle part of this surface there is internal acoustic meatus. Petro occipital fissure.
- Inferior surface forming a part of outer surface of cranial base.

Borders of petrous part of temporal bone:

Having three borders: Superior, Anterior and Posterior.





- *Superior border: separating ant surface from posterior surface. There is longitudinal sulcus where Superior petrosal sinus located.*
- *Anterior Border: Lateral part of this border articulating with squamous part of temporal bone and medial part is*

*Articulating with greater wing of sphenoid bone.*

- *Posterior border: there is a notch known as jugular notch forming jugular foramen with jugular notch of occipital bone.*

## د Temporal هډوکی:

د غیری منظمو هډوکو له جملی څخه دی چی د Sphenoid هډوکی په خلف د Occipital هډوکی په قدام او د Parietal هډوکی لاندی موقیعت لری.

د ساختمان له نظره دا هډوکی په څلور برخو ویشل شوی دی:

1: Squamous part 2: Mastoid part 3: Petrous part

4: Tympanic part

## The Squamous part

د هډوکی دغی برخی قدامی علوی برخه نیولی ده. چی له دوه برخو عمودی او افقی څخه جوړ شوی ده. دغه دواړه برخی د Zygomatic process په واسطه یو له بل څخه جدا شوی دی. دوه دانی سطحی لری خارجی او داخلی سطحه.

### خارجی سطحه:

په دی سطحه کی لاندی ساختمانونه لیدل کیږی:

- Zygomatic process
- له Zygomatic process څخه پورته Middle temporal sulcus لیدل کیږی.





- Mandibular fossa له Zygomatic process څخه لاندی موقیعت لری.
- Articular tubercle د Mandibular fossa په قدام کی موقیعت لری.

## داخلی سطحه:

د Squamous part داخلی سطحه کی متعددی میزابی قرار لری.

د Squamous part کنار نیمه دایروی شکل لری. په قدام کی د Sphenoid هډوکی سره مفصل کیږی چی په همدی وجه ورته Sphenoid margin هم ویل کیږی، او

خلفی برخه یی د Parietal هډوکی سره مفصل کیږی چی په همدی علت ورته Parietal margin وایی.

## The Mastoid Part

Mastoid part د هډوکی په خلفی سفلی برخه کی موقیعت لری. دوه سطحی خارجی او داخلی او یو نیم دایروی کنار لری. ددی برخی په خارجی سطحه کی مهم ساختمانونه External acoustic meatus په نوم او د هډوکی ددی برخی په سفلی امتداد یافته برخه د Mastoid process په نوم یادیږی.

د داخلی سطحی په وسطی برخه کی یی د Mastoid foramen داخلی فوهه او همدارنګه پدی سطحه کی د Sigmoid sulcus پورتنی برخی لیدل کیږی.

## The Petrous Part

د هډوکی دا برخه د Squamous part په سفلی انسی او د Mastoid part په علوی انسی کی موقیعت لری چی د یوی فانی په ډول د Sphenoid او Occipital هډوکو په منځ کی ننوتی ده. د Petrous part سره یوځای Tympanic part ددی برخی د جز په ډول مطالعه کیږی. د هډوکی نوموړی برخه د هرم په شان شکل لری نو په همدی وجه دی برخی ته Pyramidal part وایی. د هډوکی دا برخه دری سطحی، دری کنارونه او یوه قاعده او یوه زروه لری.

## د Petrous برخې کنارونه:

- **علوي کنار:** دا کنار قدامي سطحه له خلفي سطحې څخه جدا کوي، یوه طولاني میزابه په دې کنار کې وجود لري چې Superior petrosal sinus پکې موقیعت لري.
- **قدامي کنار:** ددې کنارو وحشي برخه د Temporal هډوکي له Squamous part سره او انسي برخه یې د Sphenoidal هډوکي د Greater wing له خلفي برخې سره مفصل کیږي.
- **خلفي کنار:** په دې کنار کې د Jugular notch په نوم ساختمان لیدل کیږي د یادونې وړ ده چې ددې کنار Jugular notch د Occipital هډوکي له Jugular notch سره د یوځای کیدو په نتیجه کې Jugular foramen جوړوي.



(c) Right temporal bone, inferior view






## Parietal Bones

***Type: Flat bone.***

***Location: In front of occipital, above temporal and behind frontal bones.***

***Structure of Parietal bone:***

***Having two surfaces outer and inner surface.***

***Outer surface being convex and inner surface being concave.***

***Having four Borders: Ant, Post, Inf and Sup.***





### Having Four Angles:

- *Anterosuperoir angle (Frontal)*
- *Anteroinferior angle (Sphenoid)*
- *Posterosuperior angle (Occipital)*
- *Posteroinferior angle (mastoid)*

### Borders:

- *Superior Border: Sagittal suture so called sagittal Border.*
- *Inferior Border: is articulating with squamous part of temporal bone so nominated as squamous border.*
- *Anterior Border: articulating with frontal bone called frontal border.*
- *Posterior Border: articulating with occipital bone so called occipital border.*

## د Parietal هډوکی

د شکل له نظره هموار هډوکی دی چی د متوسط خط دواړو خواو کی د Frontal هډوکی شاته د Occipital هډوکی په قدام او د Temporal هډوکی په علوی کی موقیعت لری.

دا هډوکی د ساختمان له نظره دوه سطحی خارجی او داخلی، څلور کناورنه قدامی، خلفی، علوی او سفلی او همدارنګه څلور زاویی قدامی علوی، قدامی سفلی، خلفی علوی او خلفی سفلی دی. خارجی سطحه یی محدبه او داخلی سطحه یی مقعره ده.

د کنارو له جملی علوی کنار یی د مقابل هډوکی له علوی کنار سره یوځای کیږی او Sagittal suture جوړوی نو په همدی وجه دی کنار ته Sagittal border هم وایی. سفلی کنار یی د Temporal هډوکی له Squamous part سره مفصل کیږی په همدی خاطر ورته Squamous border هم وایی، قدامی کنار یی د Frontal هډوکی سره مفصل کیږی په همدی خاطر د Frontal border یا





**Coronal border** په نوم هم یادیږی او خلفی کنار یی د **Occipital** هدوکی سره یوځای کیږی په همدی وجه ورته د **Occipital border** هم وایی.



# Cranial Base

## د سر د هډوکی عمومی منظره

- *Anterior cranial fossa*
- *Middle cranial fossa*
- *Posterior cranial fossa*

**Frontal bone**
- Groove for superior sagittal sinus
- Frontal crest
- Groove for anterior meningeal vessels
- Foramen cecum
- Superior surface of orbital part

**Ethmoidal bone**
- Crista galli
- Cribriform plate

**Sphenoidal bone**
- Lesser wing
  - Anterior clinoid process
- Greater wing
  - Groove for middle meningeal vessels (frontal branches)
- Body
  - Jugum
  - Prechiasmatic groove
  - Sella turcica: Tuberculum sellae, Hypophyseal fossa, Dorsum sellae, Posterior clinoid process
- Carotid groove (for int. carotid a.)
- Clivus

**Temporal bone**
- Squamous part
- Petrous part
  - Groove for lesser petrosal nerve
  - Groove for greater petrosal nerve
  - Arcuate eminence
  - Trigeminal impression
  - Groove for superior petrosal sinus
  - Groove for sigmoid sinus

**Parietal bone**
- Groove for middle meningeal vessels (parietal branches)
- Mastoid angle

**Occipital bone**
- Clivus
- Groove for inferior petrosal sinus
- Basilar part
- Groove for posterior meningeal vessels
- Condyle
- Groove for transverse sinus
- Groove for occipital sinus
- Internal occipital crest
- Internal occipital protuberance
- Groove for superior sagittal sinus

Anterior cranial fossa

Middle cranial fossa

Posterior cranial fossa



**Maxilla**
Incisive fossa
Palatine process
Intermaxillary suture
Zygomatic process

**Zygomatic bone**

**Frontal bone**

**Sphenoidal bone**
Pterygoid process
Hamulus
Medial plate
Pterygoid fossa
Lateral plate
Scaphoid fossa
Greater wing
Foramen ovale
Foramen spinosum
Spine

**Temporal bone**
Zygomatic process
Articular tubercle
Mandibular fossa
Styloid process
Petrotympanic fissure
Carotid canal (external opening)
Tympanic canaliculus
External acoustic meatus
Mastoid canaliculus
Mastoid process
Stylomastoid foramen
Petrous part
Mastoid notch (for digastric muscle)
Occipital groove (for occipital artery)
Jugular fossa (jugular foramen in its depth)
Mastoid foramen

**Parietal bone**

**Occipital bone**
Hypoglossal canal
Occipital condyle
Condylar canal and fossa
Basilar part
Pharyngeal tubercle
Foramen magnum
Inferior nuchal line
External occipital crest
Superior nuchal line
External occipital protuberance

Palatomaxillary suture

**Palatine bone**
Horizontal plate
Greater palatine foramen
Pyramidal process
Lesser palatine foramina
Posterior nasal spine

Choanae

**Vomer**

Ala

Groove for pharyngotympanic (auditory, eustachian) tube

Foramen lacerum



# Facial Bones




## د مخ هډوکی

نوموړی هډوکي چې تعداد یې 14 دانو ته رسیږی. د کوپړی د قاعدی د قدامی برخی ښخه لاندی موقیعت لری. او په دوه ګروپونو یې ویشو چې عبارت دی له متحرکو او

غیری متحرکو ښخه. په متحرکو کی یی یو هډوکی شامل دی چې Mandible ورته وایی. او غیری متحرک یی په دوه ګروپونو ویشو چې عبارت دی له طاقو او جفتو هډوکو ښخه. په جفتو هډوکو کی لاندی شپږ هډوکی شامل دی:

1: Maxilla 2: Zygomatic 3: Nasal 4: Lacrimal 5: Inf nasal

6: Palatine هډوکی شامل دی.

او په طاقو کی یی یواځې یو هډوکی چې Vomer نومیږی شامل دی.




14 Facial Bones

# The Skull

## Chapter 5



Zygomatic

Maxilla

Nasal

Lacrimal

Mandible







## Immobile

## Paired

## Maxilla

***Location: Anterior of Face.***

***Type: Irregular Pneumatic Bone.***

***Structure:***

***Body*** → ***Surfaces***

- ***Anterior surface***
- ***Orbital surface: in formation of floor Of orbital cavity.***
- ***Nasal Surface: Lateral wall of Nasal cavity.***
- ***Infratemporal surface: in formation Of infratemporal fossa.***

***Process*** → ***Frontal Proc*** | ***Zygomatic Proc*** | ***Alveolar Proc*** | ***Palatine Proc***

- ***Frontal Process: Between lacrimal and nasal bones. And take part in formation of med wall orbital cavity and lat wall of nasal cavity.***
- ***Zygomatic Process: Originated from superolateral part of maxilla body.***





- *Alveolar Process: take part in formation of alveolar arch.*
- *Palatine Process: Hard plate. Floor off nasal cavity and roof of oral cavity.*

## د Maxilla هډوکی

یوه جوړه غیری منظم Pneumatic هډوکي دی چې د متوسط خط په دواړو خواو کی د مخ په قدامی قسمت کی موقیعت لری. هر یو د Maxilla هډوکي د مربوطه طرف Orbital cavity د سطحی Nasal cavity د سطحی او وحشی جدار او د Oral cavity د چت په جوړولو کی برخه اخلی.

**د هډوکی ساختمان:** د ساختمان له نظره دغه هډوکی یو جسم او څلور بارزی Process لری.

**د هډوکی جسم:** د هډوکی جسم څلور سطحی لری چې عبارت دی له:

**قدامی سطحه:**

- **Orbital surface:** دغه سطحه چې مثلثی شکل لری د Orbital cavity د سطحی په جوړولو کی برخه اخلی.
- **Nasal Cavity:** د پوزی د وحشی جدار په جوړیدو کی برخه اخلی.
- **Infratemporal surface:** دغه سطحه خلفی وحشی خواته میلان لری چې علوی برخه یې د Infratemporal Fossa په جوړیدو کی برخه اخلی.

**د هډوکی بارزی یا Process:** نوموړی هډوکی څلور بارزی لری:

- **Frontal Process:** نوموړی بارزه د Maxilla هډوکی د جسم له علوی برخی څخه نشست کوی او پورته د Nasal او Lacrimal هډوکو ترمنځ سیر اختیاروی او په دی ځای کی د Orbital cavity د انسی جدار او د Nasal Cavity د وحشی جدار په جوړولو کی برخه اخلی.
- **Zygomatic Process:** دغه بارزه د Maxilla هډوکی د وحشی قسمت له علوی برخی نشست کوی.

- **Alveolar Process:** نوموړی بارزه د **Maxilla** هډوکی سفلی کنار جوړ کړی چی د مقابل طرف هډوکی سره د یوځای کیدو په نتیجه کی **Alveolar Arch** جوړوی. او په دی بارزه کی د غاښونو د بیخونو لپاره **Teeth socket** واقع دی.
- **Palatine Process:** دغه بارزه چی مثلثی شکل لری د **Maxilla** هډوکی د جسم د انسی سطحی له سفلی برخی نه نشست کوی او د مقابل هډوکی له همنامه ساختمان سره د یوځای کیدو په نتیجه **Hard plate** جوړوی. دهډوکی دغه بارزه دوه سطحی او دوه کنارونه لری چی د سطحو له جملی یی علوی سطحه د **Nasal cavity** سطحه او سفلی سطحه یی د **Oral cavity** چت جوړوی.




(b) Maxilla

# Lacrimal Bones

*Location: Under frontal, Behind frontal process and in front of ethmoid.*

*Type: Flat.*

*Structure:*




*Surfaces:*

- *Medial Surface: Lateral wall of Nasal Cavity.*
- *Lateral Surface: in formation of Medial wall of orbital cavity.*

*Borders:*

- *Superior border: With Frontal Bone.*
- *Inferior border: With Inf nasal concha.*
- *Anterior border: With Maxilla Bone.*
- *Posterior border: With Ethmoid Bone.*

## د Lacrimal هډوکي

نوموړی هډوکی د هموارو هډوکو له جملې څخه دی چې د مخ په دواړه خواو کی د Frontal، Ethmoid او د Maxilla هډوکی د Frontal Process ترمنځ موقیعت لری:

## د هډوکی ساختمان:

نوموړی هډوکی دوه سطحی (انسی او وحشی) او څلور کنارونه (علوی، سفلی، قدامی او خلفی) لری.

د هډوکی وحشی سطحه د Orbital cavity انسی جدار جوړوی.

د هډوکی انسی سطحه د Nasal cavity د وحشی جدار په جوړیدو کی برخه اخلی.

دهډوکی کنارونه:

- علوی کنار یی د Frontal هډوکی سره مفصل کیږی.
- سفلی کنار یی د Inferior nasal concha سره مفصل کیږی.
- قدامی کنار یی د Maxilla هډوکی د Frontal process له خلفی کنار سره مفصل کیږی.
- خلفی کنار یی د Ethmoid هډوکی سره مفصل کیږی.

## Palatine Bones

*Location: Posterior of Maxilla.*

*Type: Irregular Bone (L in Shape)*

*Structure: Made From Two Plates Perpendicular (Vertical)Plate and Horizontal plate.*

- *Vertical Plate:*

  *Two surface: Nasal surface and Maxillary surface.*

  *Four Borders: Superior, Inferior, Anterior and Posterior.*
- *Horizontal Plate:*

  *Two surface: Superior and Inferior.*

  *Four Borders: Anterior, Posterior, Medial and Lateral.*

### د Palatine هډوکی

یوه جوړه غیری منظم هډوکی دی چی متوسط خط دواړو خواو کی د Maxilla هډوکی په خلفی قسمت کی موقیعت لری. هر یو ددی هډوکو له دوه صفحو (Perpendicular plate او Horizontal plate) څخه جوړ شوی دی.

د Hard palate په وسطی برخه کی یو تیغه مانده ساختمان چی د Raphe palate نومیږی وجود لری، دغه ساختمان یعنی Raphe palate د Hard palate په قدامی نهایت کی په یو بل ساختمان چی Papilla incisive نومیږی خاتمه پیدا کوی.

Hard palate د Maxilla هډوکی د Palatine process اود Palatine هډوکی د Horizontal palate څخه جوړ شوی دی.

Soft palate د Oral cavity د چت هغه برخه ده چی Nasopharynx له Oropharynx څخه جدا کوی، Soft palate لرونکی د دوو سطحو (قدامی او خلفی) او دوه کنارو (علوی او سفلی) دی. قدامی سطحه یی مقعره او خلفی سطحه یی محدبه ده. علوی کنار یی د Soft palate له خلفی کنار سره تماس لری او سفلی کنار یی ازاد دی.

ددغه کنار په وسطی قسمت کی یوه مخروطی برامده ګی چی Uvula په نوم یادیږی لیدل کیږی. د Uvula د قاعدی په دواړه خواو کی د Mucus membrane د Fold دوه دوه انحنی ګانی د لیدلو وړ دی.

## Inferior wall of oral cavity

د خولی سفلی جدار اساسآ د Mylohyoid muscle په واسطه جوړ شوی دی.

## Oral cavity content

د خولی جوف محتویات له : وریو، غاښونو، او ژبی څخه عبارت دی:

- Gums
- Teeth
- Tongue
- Salivary glands

## Gums or gingivae

### وري

وري يو Fibrous Tissue دی کوم چی د علوی او سفلی ژامو Alveolar processes پوښوی. کومه چی د غاښونو غاړه احاطه کوی. هره وري دوه برخی لری چی یوه یی ازاده برخه ده کومه چی د غاښونو غاړی احاطه کوی او بله یی التصاقی Attached برخه ده کومه چی د ژامی د Alveolar قوسونو سره Fix شوی ده.

# Teeth

## غاښونه

غاښونه د هضمی سیستم له ساختمانونو څخه دی چې د غذایی موادو په میده کولو کی رول لری. د غاښونو مهمی وظیفی هم Mechanical digestion دی.

غاښونه د انسانانو نظر دی ته چې د عمر په اوږدو کی تعویض کیږی په دوو دستو یا ګروپونو ویشل

شوی دی:

- **Deciduous Teeth (Baby Teeth)**

موقتی غاښونه یا د طفولیت د دوری غاښونه

- **Permanent Teeth**

دایمی غاښونه لکه:

- Incisors = Cutting and shredding
- Canines = Piercing and tearing
- Molars = Grinding
- Pre molars = Grinding and crushing

## Deciduous Teeth

د طفولیت د دوری غاښونه: ددی غاښونو تعداد 20 عدده دی چې څلور دانی Incisors دوه دانی Canines او څلور دانی Molars غاښونه یی په هره ژامه کی شامل دی. د دغه عاښونه شنه کیدل په 6 میاشتنی کی شروع کیږی تر 2 کلنی پوری دوام کوی.

## Permanent Teeth

دایمی غاښونه: ددی غاښونو تعداد 32 دانو ته رسیږی، چې څلور عدده Incisors دوه عدده Canines څلور عدده Pre molars او شپږ عدده Molars غاښونه په هره ژامه کی موجود وی. ددی غاښونو شنه کیدل د 6 کلنی څخه شروع کیږی.

*The last tooth happen erupt is the third molar, which may happen between the ages of 17 and 30. The teeth of the lower jaw appear before those of the upper jaw.*

# Teeth General Structure

هر غاښ له دریو برخو څخه تشکیل شوی دی:

- **Crown**: دا د غاښ هغه برخه ده چې وریو پورته قرار لري.
- **Root**: دا د غاښ هغه برخه ده چې له **Neck** څخه لاندې واقع ده او د ژامې په **Alveolar margin** کې ښخ شوې وي.
- **Neck**: دا د غاښ هغه برخه ده چې ریښې **Root** او **Crown** ترمنځ قرار لري.

■ د غاښ ساختمان د **Crown** او **Neck** په برخو کې له بیرون څخه داخل خواته په لاندې ډول سره دی:

- **Enamel**
- **Dentine**
- **Pulp cavity**

■ د غاښ ساختمان د **Root** په برخه کې له خارج څخه داخل خواته په لاندې ډول سره دی:

- **Periodontal membrane**
- **Cement**
- **Dentine**
- **Pulp cavity**
- **Apical foramen**



# Tongue

# ژبه

ژبه تقریبآ بیضوی شکل لری. د خولی د جوف په متوسط قسمت کی قرار لری. او د Mucus Membrane یا مخاطی غشاء په واسطه پوښل شوی ده.

د ژبی عمومی وظیفی: د ذایقی په تشخیص Test، بلع، تکلم Talking او دغذایی موادو په ژولو کی رول لری.

ژبه لرونکی د یوی قاعدی Base او د یوی زورری یا Apex ده، د دوه کنارونو او د دوو سطحو (علوی او سفلی) درلودونکی ده.

د ژبی قاعده یا Base پورته د Mandibula هډوکی او ښکته د Hyoid هډوکی سره تماس لری. د ژبی Apex یا زروه ازاده ده او معمولآ د Incisors د غاښونو شاته موقیعت لری. د ژبی پورتنی سطحه چی Convex یا محدب شکل لری دوه برخی لری چی عبارت دی له:

- Oral part
- Pharyngeal groove

دغه دواړه برخی د V مانند میزابی په واسطه چی Terminal groove نومیږی سره جلا کیږی.

ددغی میزابی دواړه شاخونه د ژبی د پورتنی سطحی په وسطی قسمت کی سره جلا کیږی، چی د یوځای کیدو محیل یی د Foramen cecum په نوم یادیږی.

## Posterior Part or Pharyngeal part of tongue

د ژبی خلفی قسمت د Epiglottis سره د Mucus membrane د دری عدده التواؤ(Folds) په واسطه اړیکه لری چی عبارت دی له:

- Right Glosoepiglotic fold
- Median Glosoepiglotic fold
- Left Glosoepiglotic fold

ددی Folds یا التواؤ له جملی څخه یی Median Glosoepiglotic fold په دواړو خواو کی یو یو Pouch قرار لری چی د Vallecula epiglutica په نوم یادیږی.

د ژبی لاندینی سطحه چی د Mucus membrane په واسطه پوښ شوی په وسطی قسمت کی د مخاطی غشاء یوه التواء (Fold) د Lingual frenulum په نوم لری. د

**Lingual frenulum** په دواړو خواو کې یوه یوه برامده ګی د **Sub lingual papillae** په نوم وجود لري.

## Anterior Part or Oral Part

**Papilla of the tongue:** دا د مخاطی غشاء جګوالی دی چی د ژبې د پورتنی سطحی په **Oral part** کی د لیدلو وړ دی.

**Papillae** مختلف انواع لري چی عبارت دی له:

- **Filiform papillae**
- **Fungiform papillae**
- **Circumvallate papillae**
- **Foliate papillae**

## Muscles of tongue

د ژبې عضلات په دوو ګروپونو ویشل شوی دی چی عبارت دی له **Intrinsic** او **Extrinsic** عضلاتو څخه دغه عضلات د **Lingual septum** په دواړو خواوو کی قرار لري او په هر طرف یی تعداد ځلور ځلور عضلاتو ته رسیږي.

## Intrinsic Muscles of tongue

- **Superior longitudinal muscle**
- **Inferior longitudinal muscle**
- **Transvers muscle**
- **Vertical muscle**

## Extrinsic Muscles of tongue

- **Genioglossus muscle**
- **Hyoglossus muscle**
- **Styloglossus muscle**
- **Palatogolssus muscle**






# Glands of Oral Cavity

## د خولې د جوف غداوات

دغه غداوات چې د Salivary glands لعابیه غداواتو په نوم یادیږی په دوه ګروپونو ویشل شوی دی:

### ■ Minor salivary glands

دغه غداوات د Oral cavity په مخاطی غشاء او یا د مخاطی غشاء څخه لاندی واقع دی.

شمیره یی: دلته د 800 څخه تر 1000 پورې Minor salivary gland موقیعت لری.

دغه غداوات لاندی ډولونه لری:

- **Labial glands**

د شونډو په خلفی سطحو کی موقیعت لری.

- **Buccal glands**

د غومبورو په انسی سطحو کی موقیعت لری.

- **Palatine gland**

په Hard palate کی موقیعت لری.

- **Lingual gland**

د ژبې په علوی سطحه او د ژبې په کنارونو کې موقیعت لری.

## ■ Major salivary glands

غټ لعابیه غداوات: دغه غداوات د خولی د جوف د مخاطی غشاء څخه په یوه فاصله کی موقیعت لری، دغه غداوات په لاندی ډول دی:

- **Parotid glands**

هر یو یی ددی غداواتو د مربوطه **External auditory meatus** لاندی د **Mandibula** هډوکی د **Ramus of mandibula** شاته او د **Sternocleidomastoid** عضلی په قدام کی قرار لری.

## Parotid duct or Stenon Duct

دغه قنات **4cm** طول لری او **3mm** قطر لری.

***Spill out secretion into parotid papilla and parotid glands is a serious gland.***

- ***Sub mandibular gland***

دغه غداوات د **Mandibula** هډوکی **Inferior Border** څخه ښکته موقیعت لری.

د **Sub mandibular duct** د **Oral cavity** دواړو برخو **Lingual frenulum** ته خلاصیږی.

- **Sub lingual gland**

دغه غداوات د مخاطو په جوړیدو کی رول لری، دغه غداوات **Medline** ته نژدی د خولی د جوف په سفلی سطحه کی د مخاطی غشاء لاندی قرار لری، هر یو یی ددی غداواتو څخه د **10** څخه تر **12** پوری کوچنی **Duct** لری کوم چی **oral cavity** ته خلاصیږی.








## 2: Pharynx

## بلعوم

دا یو عضلی غشایی تیوب دی چی د قحف له قاعدی څخه تر شپږمی **Cervical** فقری تر سفلی کنار پوری د پوزی د جوف، د خولی د جوف او خنجری **Larynx** شاته موقیعت لری.

بلعوم د **12-14cm** پوری طول لری، **Transvers** قطر یی په علوی برخه کی **3,5cm** او له مری سره د اتصال په محل کی یا **Lower part** کی **1,5cm** ته راښکته کیږی.

بلعوم په دری برخو باندی ویشل شوی دی:

### - Nasopharynx (Rhino pharynx)

د بلعوم دا برخه د قحف له قاعدی څخه شروع او د **Soft palate** تر سفلی کنار پوری امتداد لری.

### - Oropharynx

دا برخه د **Soft palate** له سفلی کنار څخه د **Epiglottis** تر علوی کنار پوری امتداد لری.

- Laryngo pharynx

دا برخه د Epiglottis له علوی کنار څخه شروع او د شپږمی رقبی فقری تر سفلی کنار پوری امتداد لری.

## Relation of Pharynx

## د بلعوم ارتباطات

### ■ Anterior

بلعوم په قدام کی د Nasal cavity ، Oral cavity او Larynx سره ارتباط لری.

### ■ Posterior

بلعوم په خلف کی د رقبی فقراتو څخه د Prevertebral fascia په واسطه جدا کیږی.

### ■ Superior

بلعوم په علوی کی د Sphenoid هډوکی د جسم خلفی قسمت او Occipital هډوکی د Basilar part سره ارتباط لری.

### ■ Inferior

بلعوم په سفلی کی د مری له شروع سره چی د شپږمی رقبی فقری سفلی کنار سره تصادف کوی ارتباط لری.

### ■ Each sides

بلعوم په دواړو خواوو کی له علوی څخه د سفلی خواته د لاندی ساختمانونو سره تماس لری:

- Tongue
- Hyoid bone
- Mandibula
- Pterygoid mandibular raphe

## I: Nasopharynx

د بلعوم دا برخه د Nasal cavity شاته او د Soft palate څخه پورته قرار لری. لرونکی د چت، سطحو، قدامی خلفی او جنبی جدارو دی. چت یی د Sphenoid هډوکی د جسم او د Occipital هډوکی د Basilar part په واسطه تقویه شوی دی.

د Nasopharynx سطحه د Soft palate د خلفی سطحی په واسطه چی محدب شکل لری جوړه شوی ده.

خلفی جدار یی چی د چت په امتداد قرار لری، د اطلس د فقری د قدامی قوس په واسطه تقویه کیږی.

د بلعوم ددی برخی په هر وحشی جدار کی د مربوطه Auditory tube فوهه خلاصیږی.

## II: Oropharynx

د بلعوم دا برخه د Oral cavity شاته موقیعت لری، چی د Soft palate له سفلی کنار څخه د Epiglottis تر علوی کنار پوری امتداد لری. د بلعوم دا برخه د چت، سطحو، قدامی،خلفی او جنبی جدارو درلودونکی ده.

د Oropharynx سطحه د ژبی د 1/3 خلفی برخی او د هغه ساختمانونو په واسطه چی د ژبی او Epiglottis د قدامی سطحی ترمنځ قرار لری جوړه شویده.

د oropharynx قدامی برخه د Oropharyngeal isthmus په واسطه د Oral cavity سره تماس لری.

د Oropharynx وحشی جدارونه په دواړه خواوو کی دوه دوه قوسونه د Palatoglossal arches او Palatopharyngeal arches په نوم لری.

## III: Laryngopharynx

د Larynx شاته د Epiglottis علوی څنډی ته د Cricoid cartilage تر سفلی کنار پوری امتداد لری. د بلعوم دا برخه لرونکی د یو خلفی جدار، یو قدامی جدار او د دوو جنبی جدارو ده.

## Layers of Pharynx

## د بلعوم طبقی

- Mucosa layer
- Fibrous layer- sub mucosa layer
- Mucus layer

## Palatine tonsils

د Palatine tonsil د لمفاوی نسج دوه کتلی دی چی د oropharynx په وحشی جدارو کی په Tonsillar fossa کی قرار لری.

د Palatine tonsil د بادام almond شکل لري.

هريو Palatine tonsil لرونکی د دوو سطحو(انسی او وحشی)، دوه کناورنو(قدامی او خلفی) او دوه نهايتونو(علوی او سفلی) دی.

انسی سطحه يی د مخاطی غشاء په واسطه او وحشی سطحه يی د Fibrous capsule په واسطه پوښل شوی ده.



# 3: Esophagus

## مری

**Start: Cricoid cartilage to gastroesophageal junction.**

مری د Cricoid عضروف له سفلی کنار څخه چې د شپږمی رقبی فقری د جسم له سفلی کنار سره مطابقت لری شروع کیږی. مری تقریباً 10inch (25cm) طول لری.

مری په خپل سیر کی په څلورو ځایو کی تنګوالی لری چی دغه څلور ځایونه د مری د تنظیقاتو په نوم یادیږی. دغه څلور متضیقی نقطی د مری په لاندی ډول سره دی:

- Cricopharyngeal constriction

د Incisor غاښونو څخه په 6inch فاصله کی موقیعت لری.

- Aortic constriction

د Incisor غاښونو څخه په 9inch فاصله کی موقیعت لری.

- Bronchial constriction

د Incisor غاښونو څخه په 11inch فاصله کی موقیعت لری.

- Diaphragmatic constriction

د Incisor غاښونو څخه په 15inch فاصله کی موقیعت لری.

## Parts of Esophagus

مری له پورته څخه ښکته په لاندی برخو وشل شوی ده:

### Cervical part

- Anterior
  - Trachea
  - Right and left recurrent laryngeal nerves
- Posterior
  - Longus coli muscle
  - Vertebral column
- Two sides

په دواړو خواو کی د تایراید غدی له فصونو سره ارتباط لری.

## Thoracic part ■

- Anterior
  - Trachea
  - Right pulmonary artery
  - Pericardium + Left atrium
  - Diaphragm
- Posterior
  - Right post intercostal arteries
  - Bodies of thoracic vertebrae
  - Thoracic duct
  - Diaphragm
- Right side
  - Right lung and pleura
  - Right vagus nerve
- Left side
  - Aortic arch
  - Thoracic duct
  - Left lung and left pleura

## Abdominal part ■

د مری بطنی برخه په قدام کی د ځکر د ښی فص او په خلف کی Left crus of diaphragm سره ارتباط لری.

## Anatomic structure of Esophagus

مری د داخل څخه خارج ته د لاندی طبقاتو څخه جوړه شوی د:

- Mucosa layer
- Sub mucosa layer
- Muscular layer
  - Outer longitudinal
  - Inner cicular muscle
  - Serosal layer






Incisor teeth
Oropharynx
Epiglottis
Piriform recess
Thyroid cartilage
Cricopharyngeal constriction
Cricoid cartilage
Cricopharyngeus muscle
Trachea
Aortic constriction
Aorta
Left main bronchus
Inferior esophageal sphincter
Diaphragm
Fundus of stomach
Cardiac part of stomach
Average length in centimeters
0
16
23
38
40

# 4: Stomach

## معده

معده د هضمی سیستم ترټولو پراخه برخه ده. د Esophagus او کوچنیو کولمو ترمنځ قرار لری، د بطن په چپ علوی قسمت کی له Left hypochondriac څخه تر Epigastric او Umbilical ناحیو پوری د چپ حجاب حاجز لاندی د Transvers colon او Transvers mesocolon څخه پورته موقیعت لری.

## د معدی خارجی شکل:

یوه تشه معده د (J) د توری شکل لری خو کوم وخت چی معده د غذایی موادو څخه ډکه شی نو یو اندازه متوسع کیږی، چی متوسع معده د ناک یا Piriform شکل لری.

دوه فوهی لری:

- Pyloric orifice
- Cardiac orifice

دوه انحناګانی یا Curvature لری:

- Greater curvature
- Lesser curvature

او دوه سطحی لری:

- Anterior
- Posterior

د معدی ظرفیت په اوسط ډول د پیدایښت په وخت کی 30ml د بلوغت په وخت کی 100ml او د کهولت په وخت کی 1,5-2liters پوری رسیږی.

# Parts of Stomach

## د معدی اجزاوی

معده د هغه خط په واسطه چی د Angular notch څخه ښکته او چپ خواته د معدی لوی انحنی په طرف امتداد لری په دوه عمده برخو ویشل کیږی چی عبارت دی له:

## ■ Cardiac part

د معدې دا برخه چې نوموړی خط څخه (هغه خط چې د Angular notch څخه ښکته او چپ خواته د معدې لوی انحنی په طرف امتداد لری) پورته قرار لری. دوه برخی لری:

- Fundus
- Body

## ■ Pyloric part

د معدې دغه برخه د خط څخه لاندې قرار لری او په خپل منځ کی په دوه برخو ویشل کیږی. چی عبارت دی له:

- Pyloric antrum
- Pyloric canal

## د معدې داخلی شکل:

کله چی معده خالی وی نو د معدې مخاطی غشاء په زیاته اندازه التوأت چی د Gastric rugae په نوم یادیږی لری.

په هره ناحیه کی چی برامده گی یا التواء وی نو هلته فرورفتگی هم لیدل کیږی چی د خالی معدې د مخاطی غشاء فرورفتگی د Gastric pits په نوم یادیږی.

# Anatomical structure of Stomach

د معدې جدار له داخل څخه خارج خواته د لاندې طبقاتو څخه جوړ شوی دی:

- ■ Mucosal layer
- ■ Submucosal layer
- ■ Muscular layer
  - چی ددی خارجی برخه د طولانی عضلی الیافو څخه تشکیل شوی ده
  - ددی داخلی برخه د حلقوی عضلی الیافو څخه تشکیل شوی ده.
- ■ Serosal layer






Esophagus
Fundus
Gastroesophageal junction
Cardia
Lesser curvature
Body
Duodenum
Greater curvature
Pylorus
Antrum


Cardia
Fundus
Esophagus
Muscularis externa
• Longitudinal layer
• Circular layer
• Oblique layer
Serosa
Body
Lumen
Lesser curvature
Rugae of mucosa
Greater curvature
Pyloric sphincter (valve) at pylorus
Pyloric canal
Pyloric antrum
Duodenum

# Peritoneum

دا یوه سیروزی غشاء ده چی **Abdominal cavity** او **Pelvic cavity** یی پوښلی دی.

بطن د مطالعه کولو لپاره د دوه دانو **Transvers lines** او دوه دانو **Vertical lines** له مخی په نهه ناحیو ویشل شوی دی:

| | | |
|---|---|---|
| Right upper quadrant<br>Liver, Gallbladder | Epigastrium<br>Stomach, Pancreas | Left upper quadrant<br>Speen, tail of pancreas |
| Right lumber<br>Right kidney, right ureter | Imblicas (Umblical)<br>Small and large intestine | Left lumber<br>Left kidney, left ureter |
| Right iliac Fossa<br>Appendix, Ceacum, right ovary | Hypogastrium (Pubic area)<br>Urinary bladder, uterus | Left iliacFossa<br>Left ovary, sigmoid colon |

# Omentum (Epiplon)

یو **Double layer** دی د **Greater curvature** څخه شروع کیږی تر **Symphysis pubis** پوری او بیا بیرته **Transvers colon** برخی پوری رسیږی.

**Greater omentum** یا **Major** د معدی او **Transvers colon** ترمنځ جوړیږی.

**Lesser omentum** یا **Minor** د **Lesser curvature** څخه شروع کیږی او **Duodenum** او **Liver** سره وصلوی.

**Peritoneum** دوه پولونه لری:

- **Parietal peritoneum**
- **Visceral peritoneum**

د ځیګر او کولمو ترمنځ دوه پوله **Ligament** جوړیږی:

- **Hepato gastric ligament**

د ځګر او معدی ترمنځ جوړیږی.

## Hepato duodenal ligament -

د ځګر او وړو کولمو ترمنځ جوړیږي.

وظیفه: د بطن په جوف کې د انتان مخنیوی کوي.

Omentum چې دی Mobilize دی او دا ساحه د هر ډول خطر څخه ساتي یعنې Policeman دی. د داخل بدن ساتنه کوي د انتان په مقابل کې.

لکه: کله چې Appendix غټ شي نو دا omentum راځي او دا ساحه Cover کوي که چیرې وچوي نو دا مضر شیان نه پریږدي چې بدن ته خواره واره شي. که هر قسم مضر شي Abdominal cavity ته راشي ددې په واسطه Cover کیږي.

Peritoneum یوه Double layer ده چې کله ساحه منتن شي نو ساحه Cover کوي تر څو انتان بدن کې خواره نه شي.




## 5: Small Intestine

## وړي کولمی

وړی کولمی د معدی د Pylorus برخې څخه شروع او تر ileocecal junction پورې امتداد لري. چې تقریباً 6m اوږودوالی لري.

وړی کولمی په درې برخو ویشل شوی دی:

## Duodenum اثناء عشر

دغه برخه د دولس گوتو په اندازه چې 10inch یا 25cm اوږودوالی لري. د وړو کولمو دغه برخه لنډه مگر پراخه ده چې د معدې د Pylorus برخې څخه شروع تر Duodeno jejunal flexure پورې اوږودوالی لري. (Flexure تاو کېښ ته وایي)

C توری په شان شکل لري، اثناء عشر برخه په څلورو برخو ویشل شوې ده.

### - Upper part of Duodenum

د اثناء عشر دغه برخه دوه انچې اوږودوالی لري، دغه برخه د Pylorus څخه شروع کېږي د Superior duodenal flexure پورې امتداد لري په Level د لومړي Lumber vertebrae ښي خواته دوه انچې پورې اوږودوالی لري.

### - Descending part of Duodenum

د اثناء عشر دغه برخه درې انچې اوږودوالی لري دغه برخه له Superior duodenal flexure څخه شروع کېږي تر Inferior duodenal flexure پورې امتداد لري. د لومړي او دوهمې Lumber فقرې په ښي خواکې قرار لري. او دغه برخه د پریتوان په واسطه پوښل شوې ده، د اثناء عشر د دغې برخې داخلي سطحه د خاصو ساختمانونو درلودونکې ده چې هغې ته Papilla وایي، او په دوه ډوله ده:

### I: Major duodenal papilla

نوموړی Papilla د Pylorus څخه 8-10cm په فاصله کې د اثناء عشر د دوهمې برخې د داخلي سطحې په خلفي انسي قسمت کې قرار لري. او د Hepato pancreatic ampulla فوهه په همدې Papilla کې د اثناء عشر lumen ته خلاصیږي.

### II: Minor duodenal papilla

نوموړی Papilla د 6-8cm په فاصله کې د Pylorus څخه قرار لري، او د Accessory pancreatic duct فوهه په همدې Papilla کې د اثناء عشر Lumen ته خلاصیږي.

### - Transvers or Horizontal part of duodenum

د اثناء عشر ددې برخې اوږودوالی تر 4inch پورې رسیږي دغه برخه د Inferior duodenal flexure څخه شروع کېږي په Level د دریمې او څلورمې Lumber فقرې باندې د Abdominal aorta باندې ختمیږي، د اثناء عشر دغه برخه هم د پریتوان په واسطه پوښل شوې ده.

## Ascending part of duodenum -

د اثناء عشر دغه برخه یو انچ اوږدوالی لری دغه برخه د **Abdominal aorta** په چپ خواکی پورته د دوهمی **Lumber** فقری تر علوی کنار پوری امتداد لری او په **Duodeno jejunal flexure** باندی ختمیږی.

## Jejunum and ileum ■

دا د وړو کولمو متحرکه برخه ده چی د بطن د خلفی جدار څخه د **Mesentery** په واسطه ځوړنده ده. وړی کولمی تقریباً **6,7m** اوږدوالی لری چی له دی څخه **25cm** د اثناء عشر برخه او باقی **2/5** برخه د **jejunum** او **3/5** برخه د **ilium** په واسطه جوړیږی.

**Jejunum** د **Duodenal jejunal flexure** څخه شروع کیږی او **ileum** په **ileocecal junction** باندی خاتمه پیدا کوی.

## د ilium او jejunum ترمنځ عمده فرقونه

لومړی په نامه باندی له پاسه یو عرضانی(افقی) او بله عمودی کرښه رسمو چی ګیډه په څلورو برخو ویشل کیږی:

- ■ **Right upper quadrant**
- ■ **Right lower quadrant**
- ■ **Left upper quadrant**
- ■ **Left lower quadrant**

**فرقونه:**

| Ileum | Jejunum | |
|---|---|---|
| Almost right lower quadrant | Mostly left upper quadrant | موقیعت |
| **Lumen** یی تنګ او ډک وی | **Lumen** یی اکثره خالی او پراخه وی | جوف |
| جدار یی نازک اوکم وعایی وی | جدار یی ذخیم او ډیر وعایی وی | جدار |
| ویلای یی لنډ نازک او کم وی | ویلای یی اوږده، ذخیمه او ډیر وی | Villi |
| د شحمو کتلات یی زیات دی | د شحمو کتلات یی کم دی | Mesentery |
| **Payer's paches** لری | No payer's paches | Payer's paches |

## Anatomic Structure of Small intestine

وړی کولمی د داخل څخه خارج ته د لاندی طبقاتو څخه جوړ شوی دی:

- Mucosal layer
- Muscular layer
- Serosal layer

## Mesentery

د پریتوان یوه دبله طبقه ده چی ilium او jejunum د بطن د وروستی یا شاتنی دیوال سره وصلوی، دوه برخی لری:

- **Free border (Intestinal border)**

دغه برخه یا کنار د کوچنی کولمو سره وصل شوی دی.

- **Root of Mesentery**

دا برخه د Abdominal wall د شاتنی برخی سره وصل ده.




(a)




## 6: Large intestine

## غټې کولمې

غټې کولمې د **ileocecal junction** څخه تر **Anus** پورې امتداد لرې، تقریباً **15m** طول لرې. په غټو کولمو کې د موادو ذخیره او د مایعاتو او الکترولایتونو جذب صورت نیسي.

## Deference Between small and large intestine

## د غټو او وړو کولمو ترمنځ عمده فرقونه

- د غټو کولمو قطر په نسبت د وړو کولمو زیات دی
- غټې کولمې په نسبت د وړو کولمو پراخه دی
- غټې کولمې **Taunia coli** لرې خو وړې کولمې دغه ساختمانونه نه لرې

غټې کولمې لاندې برخو څخه تشکیل شوی دی:

## Caecum

Caecum د غټو کولمو ابتدایی برخه ده چې په Right iliac fossa کی د ileocecal orifice څخه لاندی موقیعت لری، Caecum په علوی د Ascending colon سره په انسی کی د ilium سره او په خلفی انسی کی د Appendix سره اتصال لری.

Caecum تقریبآ 6cm جګوالی لری او 7,5cm عرض لری.

## Types of caecum

### - Conical shape

په 13% اشخاصو کی پیدا کیږی، مخروطی شکل لری او Appendix یی له څوکی منشاء اخلی.

### - Inter mediate shape

په 90% خلکو کی تصادف کوی او د یو Depression په واسطه په دوه مساوی برخو Cecal pouches ویشل شوی، اپندکس یی د دواړو خواو ترمنځ ژوروالی څخه منشی اخلی.

### - Ampullary Type

په 78% خلکو کی تصادف کوی په دی ډول کی ښی خوا Pouch واضح او پراخ دی. او Appendix یی له Postero medial wall څخه منشی اخلی.

## Vermiform Appendix

Appendix د Caecum یوه استطاله ده چې په Right iliac fossa کی د ileocecal orifice څخه 2cm لاندی د Caecum د خلفی انسی جدار څخه نشت کوی. Appendix تقریبآ 2-20cm پوری طول لری چې متوسط طول یی تقریبآ 9cm دی او قطر یی 5mm دی.

### Types of Appendix due to TIP (د سیر له نظره د اپندکس ډولونه)

- Retrocecal 74% واقیعات
- Subcecal 1-5%
- Paracecal 2%
- Pelvic 21%
- Preileal 1%
- Postileal 0,5%




## MC Burney's Point

که له Right anterior iliac space څخه تر نوم پورې ساحه په درې برخو وویشو، نو دوه برخو انسی او یوې برخې وحشی د یوځای کیدلو نقطه د Appendix له قاعدې سره سمون خوري او د MC Burney's Point په نوم یادیږي.

## ■ Ascending Colon

دغه برخه چې تقریباً 5inch یا 12,5cm اوږودوالې لري، چې له Caecum څخه د ځگر د ښۍ لوب تر Inferior surface پورې امتداد لري، په همدغې ځای کې چپ لورې کږیږي او یوه زاویه جوړوي چې Right colic flexure یا Hepatic flexure په نوم یادیږي، دغه کولون د پریتوان شاته قرار لري.

## ■ Transvers Colon

تقریباً 50cm اوږودوالې لري او له ښۍ Colic flexure څخه تر چپ Colic flexure پورې امتداد لري، په حقیقت کې دغه Colon Transvers نه بلکې د ګیډې په جوف کې د Transvers mesocolon په واسطه ځوړند دی.

## ■ Descending Colon

دغه کولون 25cm اوږودوالې لري او د Left colic flexure څخه تر Sigmoid colon پورې امتداد لري، دغه برخه معمولآ د پریتوان شاته قرار لري.

## Sigmoid Colon

د کولونو دغه برخه 37,5cm اوږودوالی لری، د Descending colon او Rectum ترمنځ د حوصلی په جوف کی دپریتوان په داخل کی موقعیت لری. او د Sigmoid mesocolon په واسطه ځوړند دی.

## Rectum and Anal canal

د هضمی قنات لاندینی برخه د Rectum او Anal canal په واسطه جوړه شوی ده، د ګیډی اضافه مواد دلته راځی ترڅو د Anus له لاری خارج شی.

- Anus: the external opening of anal canal

Rectum د Sigmoid او Anal canal ترمنځ قرار لری.

Rectum د Retro sigmoid junction څخه شروع کیږی د حوصلی په خلفی جدار کی د Anorectal junction پوری امتداد لری د Anorectal junction د 2-3cm فاصله د Coccyx هدوکی د ځوکی په قدامی سفلی قسمت کی قرار لری، د دریمی Sacral فقری سره برابردی طول یی تقریباً 12cm دی قطر یی په پورته برخه کی د Sigmoid colon د قطر په شان دی خو په سفلی برخه کی یی قطر لږ پراخه دی او ددی پراخوالی په نتیجه کی Rectal ampulla جوړیږی.

### Curvatures

Rectum پنځه دانی انحنیّ ګانی لری:

خلفی انحنی یی د Sacral flexure په نوم یادیږی.

قدامی انحنی یی د Perineal flexure په نوم یادیږی.

او دری جنبی یا Lateral انحنی ګانی لری چی عبارت دی له:

- Upper right curvature
- Middle left curvature
- Lower right curvature

## Anal canal

د غټو کولمو ورستنی برخه ده، Anal canal تقریباً 3,8cm پوری طول لری او د Anorectal junction څخه تر Anus پوری امتداد لری.

# Internal part of anal canal

د Anal canal داخلی برخې په درې عمده برخو ویشل شوی دی:

## Upper part -

د Anal canal دغه برخه 15mm اوږودوالی لري او د مخاطی غشاء په واسطه پوښل شوی ده. په دې برخه کې د 6 څخه تر 10 پورې د مخاطی غشاء عمودی التواء ګانې وجود لري.

دغه التواء ګانې د Anal columns په نوم یادیږي.

د Anal columns سفلی نهایتونه د وړو عرضانی التواګانو په واسطه سره یوځای شوی چې دغه عرضانی التواګانو په واسطه سره یوځای شوی چې دغه عرضانی وړې التواګانی د Anal valve په نوم یادیږي. د هر valve په علوی مخاطی عشاء کې کمه اندازه فرورفتګی لیدل کیږی چې Anal sinus ورته وایی.

د Anal valve له یوځای کیدو څخه په مجموع کې یو خط په لاس راځي چې د Anal canal ګردچاپیره قرار لري او د Pectinate line په نوم یادیږي.

## Meddle part -

د Anal canal دغه برخه هم 15mm اوږودوالی لري ادا هم د mucus membrane په واسطه پوښل شوی ده خو دلته Anal columns وجود نه لري دغه برخه د Pectin یا Transitional zone په نوم هم یادیږي. دغه برخه د لاندینی برخې څخه د یو سپین رنګه خط په واسطه چې White line of Hilton نومیږي جلا شوی ده.

## Lower part -

دغه برخه چې 8mm اوږودوالی لري، د پوستکی په واسطه پوښل شوی ده چې لرونکی د Sweat glands او Sebaceous glands دی.

# Sphincter of Anal canal

Anal canal دوه Sphincter لري چې عبارت دی له:

## Internal anal Sphincter -

یو خود کاره غیری ارادی Sphincter دی او د Circular muscle د ضخامت په اساس په کولمو کی منځ ته راځي او د Anal canal پورتنی 30mm برخه احاطه کوی یعنی د Anorectal junction څخه تر white line of Hilton پورې امتداد لري.

## External Anal sphincter -

یو ارادی Sphincter دی او د مخططو عضلی الیافو څخه جوړ شوی دی چې ټول Anal canal یې احاطه کړی دی، دغه Sphincter دری برخې لری:

### I: Subcutaneous Part

د Internal sphincter څخه لاندی واقع ده او د Anal canal لاندینی برخه احاطه کوی.

### II: Superficial Part

بیضوی شکل لری چې په خلف کی د Coccyx هډوکی له Apex سره د Anococcygeal body په واسطه او په قدام کی د Perineal body سره نښتی ده.

### III: Deep Part

دا پورتنی برخه احاطه کوی او دا هم د هډوکو سره تماس نه لری.

## Defecation

## Hemorrhoids

د Anal canal او Rectum وریدی تخلیه د لاندی رګونو په واسطه صورت نیسی.

- Internal rectal venous plexus
- External rectal venous plexus
- Anal vein

که د مقعد ساحه له ساعته سره مقایسه کړو نو د 7,8 او 11 بجو په برخو کی د رګونه په نارمل ډول پراخه او لږ پرسیدلی وی. کله چې د هر علت له کبله د پورته دریو رګونو تخلیه صورت ونه نیسی، نو په دغو ساحو کی د پرسوب د زیاتوالی سبب کیږی چې دا حالت د بواسیرو یا Hemorrhoids په نوم یادیږی چې اکثره وخت یې اسباب په لاندی ډول وی:

- Constipation قبضیت
- د بطن د فشار پورته والی
- د اودس د ماتولو په وخت کی ډیر زور وهل
- د پښو په سر ډیر کیناستل
- اوبه کمی استعمالول- غیری فایبری غذا او نور.

بواسیر په دوه ډوله دی:

- **External Hemorrhoids**
- **Internal Hemorrhoids**

Greater omentum (cut away)
Transverse mesocolon
Transverse colon
Omental taenia
Right colic (hepatic) flexure
Left colic (splenic) flexure
Omental (epiploic) appendices
Haustra
Peritoneum (cut away)
Omental taenia (exposed by hook)
Free taenia
Ascending colon
Haustra
Peritoneum (cut away)
Descending colon
Mesocolic taenia (exposed by hook)
Free taenia
Semilunar folds
Rectosigmoid junction (taeniae spread out and unite to form longitudinal muscle layer)
Ileum
Ileal orifice
Cecum
Vermiform appendix
Rectum
Sigmoid colon
Sigmoid mesocolon
Levator ani muscle
External anal sphincter muscle



# 7: Liver

## ځيګر

ځيګر د بدن غټه افرازوی غده ده چې له **Right hypochondrium** څخه علوی او چپ خواته تر **Left hypochondrium** پورې امتداد لری. ځيګر ټول **Right hypochondrium** د **Epigastrium** پورتنی برخه او په کمه اندازه **Left hypochondrium** علوی انسی برخه نیولی ده. رنګ يې نصواری دی وزن يې په نارينه وو کی تقريباً **1600gr** او په ښځو کی تقريباً **1300gr** ته رسيږی ځکه د **Ribs** او **Costal cartilage** په واسطه پوښل شوی دی.

## External feature

## د ځيګر خارجی شکل

ځيګر د فانی په شان شکل لری خو د مخی څخه د مثلث په شان ښکاری، ځيګر پنځه سطحی لری:

**Ant, Post, Sup, Inf, and Right**

په دی سطحو کی يواځی **Inferior** سطحه واضحه ده ځکه چې سفلی **Inferior border** يې ښه واضح او متبارز دی. او نوری سطحی د يو بل په ادامه قرار لری.

## One prominent Border

سفلی کنار يې قدام خواته ښه تيره دی چې قدامی سطحه له سفلی سطحی څخه جلا کوی، نوموړی کنار په وحشی کی پڅ معلوميږی چې ښی سطحه له سفلی سطحی څخه جلا کوی.

د سفلی کنار په قدام کی دوه **Notches** دی چې عبارت دی له:

- Notch of ligament teres
- Cystic notch for the fundus of the gallbladder

## Lobes of Liver

ځيګر په قدام او علوی کی د **Falciform ligament** په واسطه په سفلی کی د **Ligament teres** د **Fissure** په واسطه اوپه خلفی کی د **Ligament venosum** د **Fissure** په واسطه په دوه **Lobes** ويشل شوی چې يو يې ښی لوب او بل يې چپ لوب دی.

## The Right lobe

ښی لوب په نسبت د چپ لوب ډیر غټ او د ځیګر 5/6 برخه جوړوی دغه لوب په دوه نورو لوبونو ویشل شوی دی:

### - Caudate lobe

دغه لوب د ځیګر په خلفی سطحه کی موقعیت لری.

### - The Quadrate lobe

د ځیګر په سفلی سطحه کی موقیعت لری او مستطیلی شکل لری. دغه دواړه لوبونه د Porta hepatis په واسطه سره بیل شوی دی.

## The Left Lobe

دغه لوب د ځیګر 1/6 برخه جوړوی.

د Porta hepatis له لاری Portal vein، Hepatic artery او Hepatic duct ځیګر یا Liver ته ننوځی.

## Ligaments of the liver

### - Falciform Ligament

دغه Ligament د ځیګر قدامی علوی سطحه د بطن د قدامی جدار او د حجاب حاجز لاندی سطحی سره مرتبط کوی.

### - Left triangular Ligament

د ځیګر د چپ لوب علوی سطحه د حجاب حاجز سره مرتبط کوی( وصلیږی)

### - Right triangular Ligament

د ښی لوب د خلفی سطحی وحشی قسمت له Diaphragm سره وصلیږی.

### - Coronary Ligament

دغه Ligament چی دوه پوښه لری(علوی او سفلی) د ځیګر Bare area پوښوی، دغه Ligament ځیګر ته استناد ورکړی دی.

# Function of the liver

ځيګر تقريباً تر 500 پورې حياتي دندې په غاړه لري خو عمده يې په لاندې ډول دي:

- ## Metabolic Function

ځيګر د کاربوهايدريتونو، پروټين او شحم په استقلاب کې رول لري.

- ## Synthetic Function

ځيګر د Bile او د Prothrombin په جوړيدو کې رول لري.

- ## Excretory Function

ځيګر د دواګانو توکسيني موادو، Cholesterol او Bile pigments په اطراح کې رول لري.

- ## Protective Function

ځيګر د Phagocytosis، Destruction ، Anti-body Formation او اطراح په واسطه وجود د مضره موادو له ضرر څخه محافظه کوي.

- ## Storage Function

ځيګر د ګلوکوز (ګلايکوجن په شکل) اوسپنې، شحم، A او D ويټامينونه او د وينې د خيروي وظيفه په غاړه لري.





Diaphragm (pulled up)
Coronary ligament
Left triangular ligament
Right triangular ligament
Fibrous appendix of liver
Left lobe of liver
Right lobe of liver
Falciform ligament
Round ligament (ligamentum teres) of liver (obliterated left umbilical vein) forming free border of falciform ligament
Costal impressions
Anterior view
Gallbladder (fundus)
Porta hepatis
Fissure for ligamentum teres
Colic impression
Hepatic portal vein
Round ligament of liver
Hepatic artery proper
Caudate process
Gallbladder
Caudate lobe
Quadrate lobe
Fissure for ligamentum venosum
Duodenal impression
Renal impression
Esophageal impression
Cystic duct
Gastric impression
Common hepatic duct
(Common) bile duct
Left triangular ligament
Right triangular ligament
Hepatorenal portion of coronary ligament
Suprarenal impression
Bare area
Inferior vena cava
Coronary ligament
Hepatic veins

# Extra Hepatic Biliary Apparatus

## صفراوی جهاز

صفراوی جهاز هغه صفرا چې په ځیګر کې جوړیږي هغه جمع کیږي او Gallbladder ته د ذخیره کیدو په خاطر نقلوي یا انتقالوي او له Gallbladder څخه د ضرورت په وخت کې نوموړې صفرا د Duodenum په دوهمه برخه کې تويیږي، نوموړی جهاز د لاندې ساختمانونو څخه تشکيل شوی دی:

- Right and left hepatic duct
- Common hepatic duct
- Gallbladder
- Cystic duct
- Bile duct

## 8: Gallbladder

## کیسه صفرا

کیسه صفرا چې د صفرا د ذخیره کیدو ځای دی د ناک شکل لري، چې د ځیګر د ښی لوب په سفلی سطحه کې قرار لري د Porta hepatis د ښی نهایت څخه د ځیګر د سفلی کنار پورې امتداد لري. صفراوي کڅوړې د 7-10cm پورې اوږدوالی لري. 3cm عرض یا پراخوالی لري او د 30-50cc پورې ظرفیت لري.

درې برخې لري:

- Fundus
- Body
- Neck

د Bile duct برخې:

- Supra duodenal part
- Retro duodenal part
- Infra duodenal part
- Intra duodenal part





## Sphincters related to bile duct and pancreatic duct

**د Bile duct په اخری برخه کی مخکی له دی چی د Pancreatic duct سره یوځای شی د Smooth muscle د کړیو په واسطه احاطه کیږی چی Sphincter جوړوی او دغه Sphincter د Sphincter choledochus په نوم یادیږی.**

## Choledochus Sphincter

**دا Sphincter د Common bile duct په وروستی برخه کی د Hepato pancreatic Junction دپاسه موقیعت لری. یو بل Sphincter د Pancreatic duct په اخیری برخه کی وجود لری چی د Sphincter pancreatic us په نوم یادیږی، دریم Sphincter د Hepato pancreatic ampulla ساحه احاطو کوی د Ampulla Sphincter په نوم یادیږی.**

**د پورته دری واړه سپینکټرو مجموعی ته به یی پخوا Sphincter oddi ویل کیده مګر اوس یواځی Ampulla sphincter د Sphincter oddi په نوم یادیږی.**




**دصفراوی کڅوړو دندی**

- د Bile ذخیره کول
- د اوبو جذبول
- د Bile غلیظول
- په صفراوی سیستم کی د فشار تنظیم
- په کمه اندازه صفراوی مالګی او کولسترول جذبول

# 9: Pancreas

## پانکراس

دغه غده یو **Mix** غده ده چې هم د **Endocrine** او هم د **Exocrine** برخې لری.

پانکراس د بطن په خلفی جدار کې په عرضانی ډول د اول او دوهم **Lumber** فقراتو په برابر د معدی شاته د اثناء عشر څخه تر توري یا **Spleen** پوری امتداد لری.

د **J** د توری په شان شکل لری. اوږدوالی یی د **15-20cm** پوری دی،عرض یی **2,5-3,8cm** پوری دی، ضخامت یی **1,2-1,8cm** ته رسیږی او تقریبآ **90gr** وزن لری.

د اناتومی له نظره پانکراس د ښی لوری څخه چپ لوری ته په څلورو برخو ویشل شوی دی:

- Head
- Body
- Neck
- Tail

خو د فزیولوژی له نظره پانکراس دوه برخی لری:

- Endocrine
- Exocrine

# Head of pancreas

د **Head** برخه یی اوږده او پلنه ده چی د پانکراس ښی نهایت او د اثناء عشر په انحنا کی موقیعت لری. دری کناړونه یا **Borders** لری:

- Superior
- Inferior
- Right lateral

او دوه سطحی یا **Surfaces** لری:

- Anterior
- Posterior

**And having a process projecting from lower and part of the head left known as uncinate process.**

## Neck of Pancreas

د **Head** او **Body** ترمنځ موقعیت لری او **2cm** اوږودوالی لری، د دوه سطحو قدامی او خلفی درلودونکی دی.

## Body of pancreas

د پانکراس اوږده برخه ده چی له **Neck** څخه **Tail** پوری اوږودوالی لری، دری کناورنه یا **Borders** لری:

- **Anterior**
- **Superior**
- **Inferior**

دری سطحی لری:

- **Anterior**
- **Posterior**
- **Inferior**

## Tail of pancreas

د پانکراس تنګه برخه ده چی چپ نهایت یی جوړوی.

## Ducts of pancreas

- **Main pancreatic duct of Wirsung**

**Main pancreatic duct** د پانکراس له لکی څخه شروع کیږی او بلاخره د **Bile duct** سره یوځای کیږی او **Hepato pancreatic ampulla** جوړوی. ددی **Duct** قطر **3mm** او اوږووالی یی **8-10cm** پوری دی.

- **Accessory Pancreatic Duct or Santorini**

د پانکراس د سر برخی څخه شروع او بلاخره د **Duodenum** په دوهمه برخه کی خلاصیږی.





# Function of Pancreas

- پانکراس د اندوکراین برخه هورمونونه افرازوی لکه: انسولین
- د پانکراس اکزوکراینی برخه هضمی انزایمونه ترشح کوی لکه:

**I: Trypsin – Break down protein**
**II: Amylase - Break down starch and glycogen into disaccharide**
**III: Lipase – Break down lipid into fatty acids or glycerol**






# 10: Spleen

## توري

Spleen په زياته اندازه په Left hypchordium او لږ څه په Epigastrium کی موقيعت لری په Level د 11 او 9 پښتی. د فانی يا Wedge په شان شکل لری خو ځينی
وختونه بيا ځلور ضلعی شکل لری.
ضخامت يی 2,5cm، اوږودوالی يی 12,5cm، عرض يی 7,5cm او وزن يی 7ownce يا
212gr دی.
تور بانجانی شکل لری.

## External Features of Spleen

دوه نهايتونه لری:

- Anterior
- Posterior

دری کنارونه يا Borders لری:

- Superior
- Inferior
- Intermediate

او دوه سطحی لری:

- Diaphragmatic surface

دغه سطحه محدبه ده او همواره ده.

- Visceral surface

دغه سطحه مقعره او غيری منظمه ده او لاندی فرورفتگی Impressions لری:

- Gastric Impression

دغه فرورفتگی د معدی د Fundus په اثر منځ ته راغلی او د علوی کنار او Intermediate کنار ترمنځ موقيعت لری.

- Renal Impression

د چپ پښتورگی په اثر منځ ته راځی او د سفلی او وسطی کناورنو ترمنځ واقع ده.





- **Colic Impression**

دغه فرورفتگی د کولون د **Splenic flexure** پوری مربوط ده.

- **Pancreatic Impression**

دا یوه یی د پانکراس د لکی پوری مربوط ده چی د توری د **Hilus** او **Colic impression** ترمنځ قرار لری.

## Function of Spleen

- **Phagocytosis**
- **Immune Response**
- **Haemopiosis**
- **Storage of RBC**



# 9th chapter

# Respiratory System






Mr.18
Kefayatullah.naibamani


# تنفسی سیستم

# Respiratory system

تنفسی سیستم د لاندی اعضاوو څخه جوړ شوی دی:

- Nose
- Pharynx
- Larynx
- Trachea
- Bronchi
- Lungs- Alveoli

دغه سیستم په دوو برخو ویشل شوی دی:

- Conducting Portion
- Respiratory Portion

## Conducting Portion

## انتقالی برخه

په دی برخه کی یواځی د هوا انتقال صورت نیسی. او دوه مهمی دندی اجراء کوی:

- سږو ته د هوا د داخلیدو لپاره یوه خلاصه لاره ده.
- د هوا برابرول چی لاندی شیان پکی شامل دی:
  د هوا صافوالی او پاکوالی
  د هوا مرطوبه کول
  د هوا معتدل والی

په دی برخه کی لاندی غړی شامل دی:

- Nose
- Nasopharynx
- Larynx
- Trachea





- Bronchi
- Terminal Bronchiole
- Lungs

## Respiratory Portion

## تنفسی برخه

د تنفسی سیستم هغه برخه ده چیرته چی د هوا تبادله صورت نیسی او د لاندی غړو څخه جوړه شوی.

- Respiratory Bronchiole
- Alveolar duct
- Alveolar sac
- Alveoli

په ځینو کتابونو کی Alveolar atrium هم ددی یوه بله برخه یادوی.

## Nose

## پوزه

پوزه د هرم شکل Pyramidal shape لری، موقعیت یی د مخ په قدام کی د Medline په امتداد دی. د پوزی چوکاټ په علوی کی د Frontal process of maxilla، Nasal bone او Nasal process of frontal bone په واسطه او په سفلی کی نوموړی چوکاټ د Nasal cartilage (علوی او سفلی) او Septal cartilage په واسطه جوړ شوی دی.

د جوړښت له نظره پوزه له دوه برخو څخه جوړ شوی ده:

### ■ External nose خارجی برخه

دغه برخه په علوی برخه کی له تندی سره ارتباط لری خو سفلی برخه یی ازاده ده چی د Naris یا Nostril په نوم دوه سوری لری، ښی او چپ. دغه سوری په وحشی برخه کی د Ala nasi او په انسی کی د Septal nasi په واسطه احاطه شوی دی.





## Internal nose (Nasal cavity) ■

دغه برخه د Nasal septum په واسطه په ښی او چپ لوری ویشل شوی ده، دغه دواړه لوری په قدام کی مخ ته د Nostrils په واسطه خلاصیږی او په خلف کی د Nasopharynx په ذریعه Nasal aperture ته خلاصیږی.

ادا دواړه خواوی یوشان جوړښت لری نو یواځی یوه برخه تری مطالعه کوو

په هره یوه برخه کی لاندی جوړښتونه موجود دی:

### - Roof

د پوزی چت په قدام کی د Nasal bone او Nasal part of frontal bone څخه جوړ شوی دی. په Middle کی د Cribriform palate of ethmoid bone څخه جوړ شوی دی.

او په خلف کی د Body of sphenoid bone څخه جوړ شوی دی.

### - Floor

په قدام کی د Palatine process of maxilla bone څخه جوړ شوی دی. او په خلف کی د Horizontal palate of palatine bone څخه جوړ شوی دی.

### - Medial wall (Nasal septum)

په Superior کی د Vertical palate of ethmoid bone، Posteroinferoir کی د Vomer bone او په Anteroinferior کی د Septal cartilage څخه ترکیب شوی دی.

### - Lateral wall

د پوزی دغه برخه د دری شیانو څخه ترکیب شوی ده:

### I: Conchae

هډوکینی متبارزی برخی دی چی د مخاطی غشاء په واسطه پوښل شوی دی. او په دری ډوله دی:

Superior conchae

Middle conchae

Inferior conchae





د هری Conchae لاندی یو ژوروالی شته چی د Meatus په نوم یادیږی ددی تعداد هم دری دانی دی:

## Superior nasal meatus

د Sup nasal conchae څخه لاندی واقع ده او د Posterior ethmoidal air sinus افرازات ورته راځی.

## Middle Meatus

په دی برخه کی یو دایروی یا بیضوی شکله جوړښت وجود لری چی د Bulla ethmoidalis په نوم یادیږی او د Middle ethmoidal air sinus افرازات ورته راځی، ددی جوړښت څخه لاندی یو درز وجود لری چی نیمه هلال مانند شکل لری او د Hiatus semilunaris په نوم یادیږی او په مجموع کی ورته د لاندی برخو افرازات راځی:

- Anterior Ethmoidal air sinus
- Frontal air sinus
- Maxillary air sinus

## Inferior Nasal meatus

د Inf nasal conchae او د پوزی د Roof ترمنځ یو مثلثی ډوله جوړښت دی چی د Sphenoidal air sinus افرازات ورته راځی.

## Vestibule

***Nasal cavity superior to the nares. Or it Is the anterior dilated part of the nasal cavity. The vestibule is lined by skin continuous with that on the exterior of the nose, hair and sebaceous glands are present.***

د پوزی په جوف کی دوه ډوله Mucous membrane وجود لری:

## - Respiratory Mucosa

دغه مخاطی غشاء د پوزی د جوف ټوله برخه بغیر د Vestibule او د پوزی د جوف هغه برخه کومه چی د olfactory mucosa membrane په واسطه پوښل شوی وی پوښوی.





## - Olfactory mucosa

دغه مخاطی عشاء د پوزی په جوف کی لاندی ساختمانونه پوښوی.

### Superior nasal conchae

### Shinoethmoidal Recess

## III: Sinuses

دا یوه خالیګاه یا Cavity ده کومه چی د هډوکو او د نورو انساجو ترمنځ وی.

## Para nasal sinus

عبارت د یوتعداد خالیګاوو څخه دی چی د پوزی د جوف ګردچاپیره په Sphenoid، Frontal، Ethmoidal او Maxilla هډوکی کی موقیعت لری دغه خالیګاوی په لاندی ډول دی:

### Frontal sinus -

تعداد یی دوه دانی دی په Frontal هډوکی کی موقیعت لری، دغه دواړه Sinus د Frontal هډوکی څخه عمودی شروع کیږی تر Orbital palate پوری. او دا دوه Sinuses د یو Thin bony layer په واسطه یو له بله جلا کیږی، جګوالی یی 3,2cm دی او پراخوالی یی 2,6cm دی او تخلیه Middle nasal meatus کی صورت نیسی.

### Maxillary sinus -

په ټولو ساینسونو کی تر ټولو غټ ساینس دی نوموړی جوفونه د Maxilla هډوکی په جسم کی موقیعت لری د هرم شکل لری. Base یا قاعده یی د پوزی د وحشی جدار ته یعنی د اول او دوهم Pre molar غاښونو او دریم Molar غاښ ریښی او کله کله د Canine غاښ ریښه ورپوری مربوطه ده.

اوږودوالی یی 3,5cm او پراخوالی یی 2,5-3cm پوری دی. او تخلیه یی د Middle nasal meatus (Hiatus semilunaris) کی صورت نیسی.

### Sphenoidal sinus -

دغه ساینس د Sphenoid هډوکی په جسم کی موقیعت لری د Sellaturcica څخه لاندی موقیعت لری دا هم جوړه ساینسونه دی او د Thin bony layer په واسطه یو له بله جلا شوی دی. تخلیه یی د پوزی د جوف په Sphenoethmoidal recess کی صورت نیسی.

- **Ethmoidal sinus**

دغه خالیګاوی د **Ethmoid** هډوکی کی موقیعت لری، نوموړی خلاوی د مربوطه **Orbit** له جوف څخه د یوی نازکی هډوکینی پردی په واسطه جدا شوی دی. دغه خلاوی په دریو ګروپونو ویشل شوی دی: **Anterior , Middle or Posterior**

د قدامی او وسطی تخلیه یی په **Middle nasal meatus** کی صورت نیسی او د خلفی تخلیه یی په **Superior nasal meatus** کی صورت نیسی.

## Function of Sinus

- د سر وزن کموی
- د اواز شدت زیاتوی
- د ضربی په جذب کی رول لری، او نه یی پریږدی چی نورو انساجو ته داخل شی
- **Possibly help control immune system**



(c) Illustration

# Larynx

## خنجره

د تنفسی سیستم د اعضاو له جملی څخه یوه عضوه ده چی د اواز د تولید وظیفه هم په غاړه لری، خنجره د متوسط خط په سر د ژبی د قاعدی څخه شروع د Hyoid هډوکی پوری، د څلورمی، پنځمی او شپږمی Cervical فقرو په قدام کی قرار لری. جګوالی یی په نارینه وو کی 44mm او عرضانی قطر یی 43mm دی، او په ښځو کی یی جګوالی 36mm او عرضانی قطر یی 41mm دی. جوړښت یی د نهه عدده عضروفونو،

Membrane او Ligaments څخه ترکیب شوی دی. عضروفونه یی نهه دانی او په دوو ګروپونو ویشل شوی دی:

- **Un paired or single cartilage**
  - Thyroid cartilage
  - Cricoid cartilage
  - Epiglottis cartilage
- **Paired cartilage**
  - Arytenoid cartilage
  - Cuneiform cartilage
  - Corniculate cartilage



## Un paired or single cartilage

### - Thyroid cartilage

د خنجری تر ټولو غټ عضروف دی، دغه عضروف په حقیقت کی له دوه صفحو څخه چی د Quadrilateral lamina په نوم یادیږی تشکیل شوی دی. دغه دواړه صفحی چی په Medline کی سره یوځای کیږی د V زاویه جوړوی چی د Adams apple په نوم یادیږی په خلف کی دواړه صفحی سره جدا کیږی او د ښکرونو په شان جوړښتونه جوړوی چی دوه یی د Superior cornu او دوه یی د Inferior cornu په نوم یادیږی. په خارجی سطحه کی ددی صفحو یو Oblique line دی کوم چی د عضلاتو سره اړیکه لری.

### - Cricoid cartilage

د Thyroid cartilage څخه لاندی موقیعت لری، قدامی برخه یی نری او Cricoid arch یا قوس په نوم یادیږی. خو خلفی برخه یی د صفحی په شکل ده چی Cricoid lamina ورته وایی. دغه دواړه برخی یی په اړخونو کی سره یوځای کیږی او مفصلی سطحی جوړوی چی ورته Thyroid articular surface وایی. ددی غضروف علوی څندو په قدام کی Cricothyroid ligament په واسطه د تایراید عضروف د سفلی کنار یا Trachea سره ارتباط لری.

### - Epiglottis cartilage

د کاشوغی په شان شکل لری، چی د ژبی د قاعدی شاته قرار لری، د Larynx لومړنی برخه ده. ددی عضروف علوی نهایت یوه اندازه عریض او ازاد دی، چی د Hyoid هډوکی او د ژبی شاته پورته امتداد لری. د Hyoid bone د موقیعت له نظره پر دوو برخو ویشل کیږی

Supra hyoidal portion
Infra hyoidal portion

داخلی سطحه یی د Mucus membrane په واسطه پوښل شوی ده.

## ■ Paired cartilage

### - Arytenoid cartilage

دغه عضروف د هرم شکل لری د خنجری په خلفی برخه کی د Cricoid lamina له پاسه موقیعت لری، لرونکی د Base او Apex دی. قاعده یی د Cricoid lamina سره وصلیږی، او دوه Process لری:

### Medially Process

په انسی کی قرار لری او Vocal process هم ورته وایی، په دی باندی Vocal ligament ارتکاز کوی.

### Lateral Process

په وحشی کی موقیعت لری چی د Muscular process په نوم یادیږی او Post cricoarythenoid muscle او Lat cricoarythenoid muscle وربانذی ارتکاز کوی.

### - Corniculate cartilage

ددی عضروفونو تعداد هم دوه دانی دی، چی د Arytenoid cartilage سره مفصل کیږی او هم دا عضروفونه د Aryepiglottic fold سره تماس لری، Conical in shape

### - Cuneiform cartilage

دا هم دوه عدده عضروفونه دی چی د Rod په شان شکل لری واړه عضروفونه دی او د Aryepiglottic fold په امتداد واقع دی او هغه تقویه کوی.

## Joints of Larynx

### - Cricothyroid joint

دغه مفصل د Synovial مفصل له جملی څخه دی اومفصلی سطحی یی عبارت دی له:

I: Thyroid articulation surface of cricoid

II: Inferior cornu of thyroid

### - Cricoarytenoid joint

دغه مفصل هم د Synovial مفصلونو له جملی څخه دی او مفصلی سطحی یی عبارت دی له:

I: Superior border of cricoid lamina

II: Base of arytenoid

## Cavity of Larynx

دغه Cavity د Inlet څخه شروع کیږی تر outlet پوری. په داخل کی د Mucosa membrane دوه Folds وجود لری چی علوی یی د Vestibular fold او سفلی یی د

Vocal fold په نوم یادیږی. د Vestibular fold او Vocal fold د موجودیت په اساس د خنجری جوف په دری برخو ویشل شوی دی:

- Upper part or Vestibular part

کوم چی د Vestibular fold څخه دپاسه واقع ده.

- Lower part or Laryngeal part

کوم چی د Vocal cord څخه لاندی واقع ده.

- Middle part or sinus of the larynx

کوم چی ددی دواړو Folds په منځ کی واقع ده.




## Laryngeal ligaments and membrane

### Thyrohyoid membrane

نوموړی Membrane د Hyoid Bone د Thyroid cartilage په Superior څنډی سره ارتباط لری.

### Hyeopiglottic ligament

دغه Ligament د Epiglot عضروف د Inferior نهایت له hyoid bone سره ارتباط لری.

### Cricotracheal ligament

دغه Ligament د Cricoid cartilage سفلی څنده د Trachea د اولی کړی سره وصلوی.

## ■ V3: Mandibular branch

دا عصب د Pons څخه منشاء اخلی او د نوعیت له نظره Mix عصب دی یعنی هم Sensory دی او هم Motor دی.

Sensory یعنی ددی په واسطه د لاندی ځایونو د درد احساس کیږی:

- Face
- Oral cavity
- Nose
- Para nasal sinus
- Teeth

او د Motor برخه یی د عضلاتو سره کار لری هغه هم د Masticatory muscle یا Chewing muscle سره.

دغه دواړه ریشی یعنی Sensory او Motor ریشی Post cranial fossa ته راځی او ددی څخه بیا Middle cranial fossa ته راځی او په دی Fossa کی Sensory ریشه Expansion کوی یعنی متوسع کیږی چی ورته Trigeminal ganglion یا Gasser lan ganglion وایی.

ددی Ganglion څخه لاندی په جلا شکل سره حرکی ریشه یا Motor وجود لری.

لکه څنګه مو چی مخکی یادونه وکړه دغه Trigeminal ganglion په دری برخو ویشل کیږی:

## ■ V1: Ophthalmic branch

دغه شعبه یی 100% حسی یا Sensory ده، حرکی ریشه نه لری او د Superior orbital fissure په واسطه Orbital cavity یا د سترګو جوف ته داخلیږی. او همهلته خاتمه پیدا کوی.

## ■ V2: Maxillary branch

دا هم 100% حسی یا Sensory دی او دا د Skull څخه د Foramen rotendum سوری په واسطه خارجیږی.

## ■ V3: Mandibular branch

دا مخکی له دی چی د Skull څخه خارج شی نو دی سره Motor root هم یوځای کیږی نو کله چی د Sensory سره Motor یوځای شی نو له همدی امله دی شعبی ته Mix وایی یعنی دا Mix شعبه ده.

کله چی Mix شوه نو دا د Skull څخه د یو سوری له لاری چی هغی ته Foramen oval وایی خارجیږی.

دا دوه ریشی یعنی Sensory یی Mandible پوری د نبنتو غابښونو پوری راځی، لاندی شونډه هم تعصیبوی او Motor یا حرکی شعبه یی Mastication muscle یا د شخوند وهلو عضلاتو ته راځی یعنی تعصیبوی یی.

### The Trigeminal Nerves – V –




(a) Distribution of the trigeminal nerve




(c) Motor branches of the mandibular division ($V_3$)

## 6: CN VI: Abducent Nerves

دی عصب ته دانوم ځکه ورکړل شوی چی د سترګی د Abduction سبب ګرځی وحشی خواته. د نوعیت له نظره دا Motor دی او د عضلاتو سره کار لری د سترګی د Lateral rectus muscle تعصیبوی.

دا عصب د Pons څخه منشاء اخلی، لومړی Post cranial fossa ته راځی بیا Middle cranial fossa ته راځی بیا Anterior cranial fossa ته راځی او بیا د Superior orbital fissure له لاری orbital cavity ته داخلیږی. که دا عصب خراب شی نو د Diplopia سبب ګرځی چی ناروغ ته به یو شی دوه ښکاری.




## 7: CN VII: Facial Nerves

دی عصب ته دا نوم ځکه ورکړل شوی چی د مخ په تظاهراتو Facial Expression کی رول لری یعنی د خفګان او خوشحالی په وخت کی د مخ بدلون له دی عصب پوری اړه لری (د مخ پراخیدل او غونجیدل)

د وظیفی له نظره دا Mix عصب دی یعنی د یوی ساحی حرکت هم انتقالوی او هم د یوی ساحی حس هم انتقالوی او یا Sensory او Motor دی له دی عصب سره پاراسمپاتیک فایبرونه هم شکته راځی.

Sensory یی ژبی ته راځی د ژبی 2/3 ant برخی ته او د غذا خوند پری معلومیږی او Motor یی د عضلاتو سره کار لری خصوصآ د لاندی عضلاتو سره:

- Facial muscle
- Head muscle
- Ear muscle

پاراسمپاتیک فایبرونه یی د ارادی غړو سره کار نلری او د غیری ارادی غړو سره کار لری چی په لاندی ډول دی:

- Sublingual gland
- Submandibular gland
- Lacrimal gland

دا عصب د Pons څخه منشاء اخلی او د Skull څخه د یو سوری له لاری خارجیږی چی هغی ته Stylomastoid foramen وایی کله چی خارج شو نو د Parotid gland په برخه کی په څانګو ویشل کیږی چی دغه څانګی یی په لاندی ډول دی:

- Buccal branch
- Cervical branch
- Mandibular branch
- Temporal branch
- Zygomatic branch

که کوم ځای تخریب شی نو هماغه ځای به غونجیږی که دا عصب خراب شی نو هغی ته Bell's palsy وایی.



## 8: CN VIII: Vestibular cochlear Nerves

دی ته ځکه دا نوم ورکړل شوی چې دا د Inner ear د داخلی غوږ دوه ساختمانونو ته راځی، یو Vestibule ته او بل Cochlea ته.

چې د Vestibule دنده د موازینی یا Balance ساتل او د Cochlea دنده داده چې په اوریدو کی رول لری یعنی ددی عصب په واسطه اوریدل کیږی.

Deafness یا کوڼ والی په دوه ډوله دی:

- **Conductive**

په دی کی عصب جوړ وی خو لاره کی کوم مشکل موجود وی غږ تر Cochlea نه رسیږی.

- **Neural**

په دی کی اواز تر Cochlea رسیږی خو عصب خراب وی.

Vestibule یا دهلیز پراخه ساختمانونه دی او Cochlea بیا Spiral یا تاوشوی ساختمانونه دی.

دا عصب د وظیفی له نظره Sensory دی او د Pons څخه منشاء اخلی نو دا عصب تر inner ear پوری ځان رسوی.

کله چې د Pons څخه منشاء واخلی نو Post cranial fossa ته راځی بیا Middle cranial fossa ته راځی او له دی ځای څخه بیا د یو سوری له لاری چې ورته Internal acoustic meatus وایی Inner ear ته داخلیږی کله چې داخل شو نو یوه برخه یې Vestibule ته ځی او بله برخه یې Cochlea ته ځی.

غوږونه دوه سوري لری:

- External acoustic meatus
- Internal acoustic meatus



# 9: CN IX: Glossopharyngeal Nerves

دی عصب ته دانوم ځکه ورکړل شوی چی دا یوه شعبه Gloss یعنی ژبی ته ورکوی او بله شعبه Pharynx یعنی ستوني ته ورکوی.

دا عصب د نوعیت له نظره Mix عصب دی یعنی هم Motor او هم Sensory دی.

او همدارنګه له دی سره پاراسمپاتیک فایبرونه هم شته.

Sensory یی Tongue یا ژبی ته راځی خصوصآ د ژبی 1/3 post برخی ته او په Taste یا د غذا د خوند په معلومولو کی رول لری.

پاراسمپاتیک فایبرونه یی غیری ارادی غړو ته راځی یا Parotid gland ته راځی.

او Motor برخه یی د Pharynx عضلی ته راځی چی هغی عضلی ته Stylopharyngeal muscle وایی.

دا عصب د Medulla څخه منشاء اخلی چی کله منشاء واخلی نو د Jugular foramen له لاری د Skull څخه خارجیږی او Neck ته راځی په Neck یا غاړه کی په Branches یا شعبو ویشل کیږی:

- Lingual branch: to tongue
- Tonsillar branch: to tonsil
- Muscular branch: to Stylopharyngeal muscle
- Pharyngeal branch: to Pharynx
- Carotid branch: to Carotid body or sinus

## Carotid branch

دغه شعبه د Carotid body د Bifurcation برخی ته راځی یعنی په کوم ځای کی چی په دوه برخو ویشل کیږی، او Carotid body تعصیبوی.

Carotid body په حقیقت کی د Chemoreceptors مجموعه ده.

دغه اخذی یا Receptors د Hypoxia او Hypercapnia په مقابل کی تنبه کیږی.




## 10: CN X: Vagus Nerves

جمع یی Vagi ده او د Vagus تخت لفظی معنا مبهم یا نامعلوم دی یعنی دقیق سیر یی معلوم نه دی زموږ د بدن هری خواته شعبات ورکوی.

د وظیفی له نظره Mixed عصب دی یعنی هم Sensory دی او هم Motor ریشی لری، همدارنګه دا هم د پاراسمپاتیک فایبرونه لری او ورسره ښکته کیږی.

Sensoryبرخه یی د Larynx یا خنجری Mucus membrane مخاطی غشاء ته راځی.

Motor برخه یی د Larynx د عضلاتو سره کار لری.

پاراسمپاتیک فایبرونه یی: ځومره غیری ارادی غړی چی په سینه کی دی هغی ټولو برخو ته شعبات ورکوی. (زړه، سږی او نور) او هم د ګیډی زیاتره برخو ته راځی په استثنیٰ د Large intestine د ځینو برخو ځخه او Pelvic organ ځخه چی هلته نه ځی.

دا یواځینی CN دی چی د غاړی ځخه ښکته کیږی سینی ته راځی او د سینی ځخه د Pelvic برخی ته ښکته کیږی، او دا یواځینی CN دی چی اوږدوالی یی د نورو په نسبت زیات دی.

دا عصب د Medulla ځخه منشاء اخلی او د Skull ځخه د Jugular foramen له لاری خارجیږی او غاړی ته به راځی، یعنی دا جوړه دی یا دوه دانی دی. دا دواړه Vagus عصب یو

Right طرف ته او بل د غاړې Left طرف ته راځي. په غاړه کې ددې دواړو عصبونو ارتباطات یوشان دي خو کله چې د غاړې څخه سینې ته راځي نو ددې دواړو ترمنځ دغه

ارتباطات بیا فرق کوي. دا بیا د حجاب حاجز یا Diaphragm څخه تیریږي او بیا ګیډې ته راځي.

په Diaphragm کې یو ډول سوري موجود دي چې ورته Esophageal opening وايي ددې سوريو له لارې Esophagus ګیډې ته ښکته کیږي او ددې سوري له لارې د Vagus عصب هم ګیډې ته ښکته کیږي یا داخلیږي. کله چې Abdominal cavity ته داخل شو هلته Right Vagus عصب د Stomach په خلف کې په Branches یا څانګو ویشل کیږي چې ورته Posterior vagal trunk وايي او Left Vagus عصب د Stomach په قدام کې په Branches یا څانګو ویشل کیږي چې ورته Anterior vagal trunk وايي.

## Branches of Vagus nerves

- **Meningeal branch**

کوم چې Dura matter تعصیبوي.

- **Auricular branch**

د External ear د Auricle برخه تعصیبوي.

- **Pharyngeal branch**

د Pharynx ټول عضلات تعصیبوي په استثنیٓ د Stylopharyngeal muscle چې دا د نهم Cranial nerve په واسطه تعصیبیږي.

- **Superior laryngeal branch**

دا په دوه برخو ویشل کیږي:

- External laryngeal branch

دا خنجرې ته راځي او هلته Cricothyroid muscle تعصیبوي.

- Internal laryngeal branch

دا د خنجرې مخاطي غشاء ته راځي. کوم Mucus membrane یا مخاطي غشاء چې تر Vocal cord پورې وي هلته راځي او هغه تعصیبوي.

## Recurrent laryngeal nerve

دا عصب د Larynx له ښنګ ښخه تیرېږی او شعبه نه ورکوی خو کله چې یی د ښنګ ښخه تیر شو وروسته دوباره بازګشت کوی یعنی بیا Larynx ته شعبه ورکوی.

Larynx ته ځکه راځی چې هلته دوه کارونه ترسره کوی:

- د Larynx ټول عضلات تعصیبوی په استثنیٰ د Cricothyroid عضلی ښخه چې هغه نه تعصیبوی.
- د Larynx یا خنجری Mucus membrane تعصیبوی کوم چې د Vocal cord ښخه لاندی یا ښکته دی.

## Cardiac branch

دا زړه ته راځی او HR کموی.







## 11: CN XI: Accessory Nerves

کومکی هم ورته وایی. کومکی ځکه ورته وایی چې په یواځی شکل سره غاړی ته نه راځی خو د Vagus عصب شاته د کومکی عصب په شکل راځی.

دا یواځینی Cranial nerves دی چې دوه منشاء ګانی لری:

- Spinal root

دا د Upper 5 cervical segment او Spinal cord څخه منشاء اخلی.

- Cranial root

دا د Medulla له برخې څخه منشاء اخلی.

Spinal root چې کله د Spinal cord څخه منشاء واخلی نو د Foramen magnum له لارې Cranial cavity ته داخلیږی، چې کله داخل شو نو هلته د Cranial root سره یوځای یا Join کیږی چې کله یوځای شو نو دی ته Accessory nerves وایی. نو دا عصب بیا د Vagus سره یوځای د Skull څخه د Jugular foramen له لارې خارجیږی او غاړې ته راځی او هملته خاتمه پیدا کوی.

په غاړه کی دا عصب دوه عضلې تعصیبوی:

- Trapezius muscle
- Sternocleidomastoid muscle

نو دا چې د عضلاتو سره کار لری نو دا عصب بیا د نوعیت له نظره یو Motor عصب دی.

## 12: CN XII: Hypoglossal Nerves

دا عصب ژبې ته راځی خو د ژبې د لاندې برخې څخه تیریږی، دا عصب د Medulla څخه منشاء اخلی او Motor عصب دی چې د ژبې ټول عضلات تعصیبوی.

د Skull څخه د یو کانال له لارې خارجیږی چې هغی کانال ته Hypoglossal canal وایی.



# Spinal Nerves

هر Spinal nerve د دوو ورو ريښو ديوځای کيدو څخه جوړيږی.

- Dorsal rootlet
- Ventral rootlet

دغه ريښي په Intervertebral foramen کی سره نږدی يوځای کيږی.

Dorsal rootlet په خپل مسير کی پرسوب لری چی ورته Posterior or dorsal root ganglia ويل کيږی.

## Branches of Typical Nerve

Spinal nerve له Spinal cord سره د دوه ريښو (Dorsal or ventral roots) په واسطه وصل شوی دی. Ventral root د Spinal cord د Anterior horn سره خو Dorsal root بيا د Spinal cord د Posterior horn سره وصل دی.

په هره خوا کی Anterior root او Posterior root سره يوځای کيږی او Spinal trunk جوړوی چی هم Motor او Sensory فايبرونه لری، کله چی Spinal trunk د Intervertebral foramen ته ورسيږی په Anterior & Posterior Rami باندی ويشل کيږی.

Dorsal (Post) ramus د Vertebral column ته نږدی عضلات او پوستکی تعصيبوی خو Ventral rami اوږده دی او Upper & lower limb ته رسيږی.

Spinal nerves چی 31 جوړی دی 8 يی د Cervical د ناحيی، 12 يی د Thoracic، 5 يی د Lumber، 6 يی د Sacral ناحيی او يو يی د Coccygeal nerve دی.

**Spinal Nerves**

- ALL are mixed nerves (except the first pair)
- 31 pairs of spinal nerves:
  - 8 cervical nerves (C1 to C8)
  - 12 thoracic nerves (T1 to T12)
  - 5 lumbar nerves (L1 to L5)
  - 5 sacral nerves (S1 to S5)
  - 1 coccygeal nerve (Co or Cc)



# Plexus

دیر Spinal nerve سره یوځای کیږی او دری Plexus جوړوی:

- Cervical Plexus
- Brachial Plexus
- Lumbosacral Plexus

T2 او T11 spinal nerve پوری شعبات د Plexus په جوړیدو کی برخه نه اخلی او د Ribs ترمنځ په سینه کی غځیدلی او شاوخوا عضلاتو او پوستکی ته شعبات ورکوی.




## Cervical Plexus

د پورتنیو څلورو Cervical nerve د Ventral rami په واسطه جوړ شوی چی شعبات یی په دوه ګروپونو ویشل شوی دی:

- Superficial (Cutaneous) Branches

چی دا په خپل وار سره لاندی شعبات لری:

- Lesser occipital nerve
- Great auricular nerve
- Transvers cutaneous nerve of the neck
- Supra clavicular nerve

- Other Branches

چی دا بیا په دوه ډوله دی:

- **Communicating branch**

چې د Vagus، Hypoglossal او Sympathetic nerve سره رابطه لري.

- **Muscular branch**

کوم چې د سر عضلات تعصیبوی.




## Phrenic nerve

دی ته Nerve diaphragm هم وایی ځکه د حجاب حاجز، Sensation او Movement سره کار لري.

د نوعیت له نظره Mixed عصب دی یعنې هم Motor دی او هم Sensory دی.

د Motor برخه یې د Diaphragm عضلاتو ته راځي.

او Sensory یې Diaphragm ته راځي او ددې په Sensation کې رول لري.

حجاب حاجز دوه مخه لري، پاسنی مخ یې د Pleura په واسطه پوښل شوی لاندینی مخ یې د Peritoneum په واسطه پوښل شوی دی، نو دا عصب Mediastinal pleura او Pericardium تعصیبوی.

دا عصب له C3، C4 او C5 spinal nerve د Ant rami څخه په غاړه کې د تایراید عضروف د Superior border څخه منشاء اخلي.

دا عصب د Diaphragm د Canal opening له لارې کیږي ته داخلیږي کله چې داخل شو نو ځان بیا خپل هدف ته رسوي. ددی عصب د زیات تخریب له کبله Hiccup (اټکی) پیدا کیږي که دغه Hiccup دوامداره شی نو باید د CRF (Chronic renal failure) لپاره وشی خصوصآ دا په زړو اشخاصو کې وی او یا په تداوی کې ورته د Phenergan شربت ورکول کیږي.




## Brachial Plexus

**د ټولو څخه غټ Plexus دی یوه برخه یی په Neck کی او بله یی په Axilla کی موقیعت لری، په Upper limb کی چی څومره عضلات وی له دی څخه ورته شعبات ځی. ددی په ترکیب کی C5، C6، C7، C8 او T1 spinal nerve د قدامی Rami برخه اخلی.**



د جوړښت له نظره دا Plexus د لاندې برخو څخه جوړ شوی دی:

- Root
- Trunk
- Division
- Cords

## Root

پنځه ريښې يا Roots لري:

- C5
- C6
- C7
- C8
- T1

د Root د يوځای کېدو څخه Trunk جوړيږي، که C5 او C6 سره يوځای شي نو Upper trunk جوړوي، C7 ريښه په يواځې ډول سره Middle trunk جوړوي او کله چې C8 او T1 سره يوځای کيږي نو Lower trunk جوړوي.

هر Trunk په دوو برخو ويشل کيږي چې هرې برخې ته يې Division ويل کيږي، يوته يې Upper division ويل کيږي او بل ته يې Lower division ويل کيږي.

د upper trunk upper division او middle trunk upper division سره يوځای کيږي او Cords جوړوي چې ورته Lateral cord وايي.

Lower trunk upper division په يواځې ډول سره Medial cord جوړوي.

او Middle trunk lower division, upper trunk lower division او د lower trunk lower division سره يوځای کيږي او Posterior cord جوړوي.

د Division د برخې څخه يې کوم عصب منشاء نه اخلي يا به د Trunk، Root او يا هم د Cords څخه به منشاء اخلي، خو زياتره يې بيا د Cords څخه منشاء اخلي.

ددې عصب د Root څخه دوه عصب منشاء اخلي:

- Long thoracic nerve
- Dorsal scapular nerve





د Trunk له برخی څخه یی د Upper trunk عصب منشاء اخلی چی هغه هم دوه دانی دی:

- Supra scapular nerve
- Nerve to subclavian muscle

د Lateral cord څخه لاندی عصب منشاء اخلی:

- Muscle cutaneous
- Lateral pectoral nerve
- Lateral root of median nerve

د Medial cord څخه لاندی شعبات منشاء اخلی:

- Ulnar nerve
- Medial pectoral nerve
- Medial root of median nerve
- Medial cutaneous nerve of arm
- Medial cutaneous nerve of forearm

د Posterior cord څخه لاندی شعبات منشاء اخلی:

- Upper sub scapular nerve
- Nerve to latissimus dorsi muscle
- Lower sub scapular nerve
- Axillary nerve
- Radial nerve

## Musculo cutaneous nerve

دا د Brachial plexus د Lateral cord څخه منشاء اخلی. دا Mixed عصب دی یعنی هم Motor او هم Sensory دی.

Motor برخه یی د Arm قدامی برخی عضلات تعصیبوی او Sensory برخه یی پوستکی تعصیبوی خصوصاً د Forearm د Lateral part پوستکی.





## Radial nerve

دا هم د Brachial plexus یوه شعبه ده چې د Posterior cord څخه منشاء اخلی یو Mixed عصب دی.

Motor برخه یی د Arm او Forearm د Posterior part عضلات تعصیبوی او Sensory برخه یی د hand پوستکی ته راځی او د لاس د Dorsal برخی 3نیمی وحشی گوتو پوستکی تعصیبوی.

## Ulnar nerve

دا هم د Brachial plexus یوه شعبه ده چې د Medial cord څخه منشاء اخلی، دا هم Mixed عصب دی.

Motor برخه یی د دوه برخو عضلاتو ته راځی:

- د لاس ټول عضلات تعصیبوی په استثنّي د Thenar او لومړی او دوهم Lubrical عضلاتو څخه.
- د Forearm د Anterior برخی دوه عضلاتو نیمه ای انسی قسمت (Median half) ته راځی چې دا دوه عضلات په لاندی ډول دی:
- Flexor carpiulnaris muscle
- Flexor digitorum profundus

Sensory برخه یی د لاس پوستکی ته راځی، د لاس د یو نیم انسی گوتو په اندازه او د Palmar او Dorsal پوستکی تعصیبوی.

## Auxiliary nerve

دا هم د Brachial plexus یوه شعبه ده چې له Posterior cord څخه منشاء اخلی او د Deltoid muscle او د هماغی برخی پوستکی هم تعصیبوی.

## Thoracic spinal Nerves

هغه عصب دی چې د سینی له برخی څخه محیط ته ځی دا له T1 څخه تر T12 پوری 12 جوړی لری، لومړنی 11 جوړی یی د Intercostal spinal nerve او دولسمه جوړه یی د Sub costal spinal nerve په نومونو یادیږی.





هر Spinal nerve د Ribs یا پښتیو لاندینی Borders څخه تیریږی او په Lower border کی یوه Grove ده چی د Sub costal grove په نوم یادیږی په هغی کی تیریږی د VAN په شکل یعنی Vein, Artery, Nerve د هری پښتی څخه لاندی دا دری شیان تیریږی.

دا یوائځینی Spinal nerve دی چی په یواځی ځان سره Plexus جوړوی.

دوهم Classification یی:

- Typical thoracic spinal nerve
- Atypical thoracic spinal nerve

Typical خاص اعصاب دی او یواځی د سینی عضلاتو او پوستکی ته شعبات ورکوی دا دری دانی Typical spinal nerve دی:

- T4
- T5
- T6

Atypical د T1 څخه تر T3 پوری او د T7 څخه تر T12 پوری شعبات ورکوی، T1 او T3 یی د سینی څخه علاوه Upper limb ته شعبات ورکوی او T7 او T12 یی Abdominal part ته شعبات ورکوی.

## Lumber Plexus

دا د Abdomen په Posterior wall کی د Psoas major muscle څخه شاته موقیعت لری، د L1 څخه تر L4 spinal nerve د Anterior rami په واسطه جوړیږی.

## Borders of Lumber Plexus

نظر دی ته چی د Psoas muscle د کومی برخی څخه وځی:

- Anterior Border

هغه شعبات چی د Psoas د عضلی د قدامی برخی څخه وځی.

- Medial Border

هغه شعبات چی د Psoas عضلی د انسی برخی څخه وځی.

- Lateral Border

هغه شعبات چی د Psoas د عضلی د وحشی Border څخه منشاء اخلی.





## Anterior Border

ددی څخه یواځې یوه شعبه وځی:

- **Genital Femoral Nerve**

دغه عصب دوه برخې لری:

- **Genital**

کوم چې تناسلی برخو ته راځی، په نارینه وو کی دا د **Cremastric** عضلې ته راځی او د **Testis** په پورته کولو کی رول لری، په ښځینه وو کی بیا دا **Labia major** ته ځی.

- **Femoral**

دا برخه یی د **Thigh** قدامی پورته برخی ته راځی او د پوستکی تعصیبوی.

## Cremastric Reflex

که د نارینه وو د ورون **(Thigh)** پورتنی برخه د یوه تیره څیز په واسطه **Scratch** شی نو **Testis** پورته کیږی ځکه دلته یو عصب راغلی دی نو دی ته **Cremastric reflex** وایی.

## Medial Border

له دی څخه دوه عصبه وځی:

- **Obturator Nerve**

دی ته ځکه دا نوم ورکړل شو چی دا **Pelvic** ته راځی او هلته د **Obturator foramen** له لاری خارجیږی او **Thigh** ته راځی او د **Thigh** په **Medial** برخه کی **Skin** او عضلات تعصیبوی.

- **Lumbo sacral Trunk**

دا د **L4** او **L5 spinal nerve** د **Anterior rami** مجموعی ته وایی، دی ته ځکه دا نوم ورکړل شوی چی هم د **Lumber** له ناحیی څخه وځی او **Sacral** ځکه ورته وایی چی د **Sacral plexus** په جوړیدو کی برخه اخلی او **Trunk** د دوو ریښو څخه منځ ته راځی.

## Lateral Border

لاندی شعبات تری راوځی:

- **Iliohypogastric nerve**
- **Ilioinguinal nerve**
- **Lateral Cutaneous nerve of thigh**
- **Femoral nerve**




## Sacral Plexus

**دا Plexus په Pelvic کی جوړیږی( په حوصله کی د یو پوښ یا Fascia څخه لاندی جوړیږی)**

**دا د L4، L5، S1، S2، S3 او Portion of S4 Spinal nerve د Anterior rami برخی په واسطه جوړیږی.**

**L4 او L5 ته Lumbosacral trunk هم وایی.**

## Branches

- **Sciatic nerve**

دی ته رګ نثاء هم وایي دا ورته ځکه وایي چې ددی امراض نسبت سړو ته په ښځو کی زیات وی د Lower limb اکثره عضلات او پوستکی ددی په واسطه تعصیبیږی. دا په ټول بدن کی تر ټولو اوږود ترین او هم ضخیم ترین عصب دی، Pelvic څخه شروع کیږی او تر Foot یا پښنی پوری رسیږی.

## Pathway of Sciatic nerve

دا عصب د Pelvic څخه شروع کیږی او د Pelvic څخه د Greater sciatic foramen له لاری خارجیږی او Gluteal muscle ته راځی، او د Inferolateral برخی څخه تیریږی او د Thigh شاتنی برخی ته راځی. دا عصب د Gluteal د برخی Suprolateral څخه نه تیریږی

ځکه د ستنی لپاره هغه مناسب ځای دی. دا عصب تر Popliteal fossa کوم چې د Knee joint شاته موقیعت لری هغی پوری راځی او په دوه برخو ویشل کیږی:

- Tibial nerve
- Common Peroneal nerve (Fibular nerve)

## Tibial Nerve

دا د Sciatic nerve څخه د Popliteal fossa په علوی برخه کی منشاء اخلی او دا په Leg کی د Tibial هډوکی په امتداد ښکته د Ankle joint پوری راځی.

کله چې Ankle joint ته ورسیږی نو په دوه شعبو باندی ویشل کیږی:

- Medial planter nerve
- Lateral planter nerve

## Common peroneal (Fibular) Nerve

دا په Leg کی د Fibula هډوکی تر Neck پوری راځی او هلته په دوه برخو ویشل کیږی:

- Superficial peroneal nerve
- Deep peroneal nerve

دا دواړه د Foot یا پښنی Dorsal برخی ته راځی او هلته ټول عضلات او پوستکی تعصیبوی.

## Coccygeal Plexus

په بدن کی ترټولو کوچنی ترین Plexus دی.

د S4، S5 او د Coccygeal nerve په واسطه د Coccyx هډوکی د پاسه په حوصله کی جوړیږی او له دی څخه یوه شعبه منشاء اخلی چی هغی ته Anococcygeal nerve وایی یعنی دا د Anus شاوخوا ته راځی.




## ANS (Autonomic Nervous System)

دا هم د محیطی عصبی سیستم پوری مربوط دی یعنی له مرکز څخه محیط ته ځی، دا دوه برخی لری:

- Sympathetic
- Para Sympathetic



دوی د بدن غیری ارادی غړو ته ځی، دوی هر غړی ته یوځای ځی او د یوبل ضد کار ترسره کوی په استثنّی د لاړو غداواتو چې په هغی باندی یوشان تاثیر لری یعنی که زیات شی نو تنبه کوونکی تاثیر لری.

سمپاتیک له دوو ځایونو څخه خارجیږی:

- Thoracic lumber

پاراسمپاتیک هم له دوه ځایونو څخه خارجیږی:

- Cranium sacrum

## Sympathetic Nervous system

Sympathetic ganglia یا ورته Para vertebral ganglia هم وایی دا هغه Ganglia ګانی دی چې د Spinal cord سره موازی سیر لری.

Preganglionic fiber د Ganglia څخه مخکی دی او د Spinal cord څخه وروسته واقع دی کله چې دا سمپاتیک فایبرونه راوځی نو ددی Ganglia سره یوځای کیږی چې همدی ته Preganglionic fiber ویل کیږی کله چې له دی سره یوځای شی نو له دی څخه بل Fiber وځی او هغه راځی د اعضاوو سره یوځای کیږی چې هغی ته Post ganglionic fiber ویل کیږی، Preganglionic fiber لنډ فایبرونه (Short fiber) دی او Postganglionic اوږده (Long fibers) دی.

د Preganglionic fiber د نهایت څخه Acetylcholine افرازیږی او د Post ganglionic fiber څخه بیا Epinephrine او Norepinephrine افرازیږی.



## Para Sympathetic fiber

پاراسمپاتیک چی کومه عضوه تعصیبوی دغه Para sympathetic fiber هغی ته نږدی موقیعت لری.

لکه: پاراسمپاتیک چی زړه تعصیبوی نو هملته یی Ganglia هم وځی او Preganglionic fiber ganglia ورته وایی.

ددی postganglionic fiber لنډ یا Short او Preganglionic fiber یی Long دی.

دا دواړه فایبرونه یعنی د Preganglionic fiber او Post ganglionic fiber څخه Acetylcholine افرازیږی.



# 15th chapter

# Anatomy of the Eye






Mr.18
Kefayatullah.naibamani


# Eye

# سترګه

**Location: Orbital cavity**

د اناټومی له نظره سترګه لاندی طبقی لری:

- Outer layer (Fibrous layer)
- Vascular layer (Middle layer)
- Inner layer (Nervous layer)

## Outer layer or Fibrous layer




په دی طبقه کی دوه برخی شاملی دی:

- **Sclera**

د سترګی 5/6 خلفی برخه جوړوی کوم چی له **Dense fibrous tissue** څخه جوړه شوی ده، دنده یی د سترګی شکل ثابت ساتل دی، سپین رنګ لری.

د **Skleros** څخه اخستل شوی چی د **Hard** په معنا سره ده.

- **Cornea**

دا د سترګی 1/6 قدامی برخه جوړوی د **Iris** څخه د **Anterior chamber** په واسطه جلا کیږی.




## Structure of Cornea

د جوړښت له نظره Cornea د لاندی طبقو څخه جوړه ده:

- Corneal Epithelium
  - Non keratinized stratified squamous epithelium
- Bowman's Membrane
- Substantia Propria
- Descemet Membrane
- Simple Squamous Mesothelium



# Middle layer or Vascular layer

دا له دری برخو څخه جوړه ده:

- Choroid
- Ciliary body
- Iris




## Choroid

دا یوه نازکه رنګینه طبقه ده چې د Sclera خلفي قسمت له Retina څخه جدا کوي، بیروني سطحه د Sclera څخه د Supra choroidal lamina په واسطه جلا کیږي.

Choroid د ساختمان له نظره د لاندې صفحو څخه متشکل دی:

- Outer vascular lamina

کومه چې د شریانونو او وریدونو څخه جوړه ده.

- Middle or choriocapillary lamina

کومه چې د Capillaries څخه جوړه ده او د Diffusion په عملیه کې د Retina د Cons او Rods حجرات تغذیه کوي.

- Inner or basal lamina

نازکه او شفافه صفحه ده چې د Retina په بیروني رنګینه صفحې پورې نښتې ده.

## Ciliary body

دا یوه ضخیمه برخه ده چې په شاتني برخه کې له Choroid او مخکینې برخه کې له Iris سره وصل شوی ده. دا دوه برخې لري:

- Anterior Part

دا غاښ مانند ساختمانونه لري چې Ora serrata ورته وایي.

## Posterior Part

د هستولوژی له نظره لاندی برخی لری:

- **Ciliary Muscle**
- **Ciliary Process**
- **Vessels**
- **Epithelium two layers:**
  **Outer is Pigmented cuboidal epithelium**
  **Inner is non pigmented columnar epithelium**




## Iris

د منځنی طبقی تر ټولو قدامی برخه ده، په منځنی برخه کی یو سوری لری چی د Pupil په نوم یادیږی.

## Structure of Iris

د Iris قدامی Structure د یو طبقه یی Mesothelium په واسطه پوښل شوی او خلفی یی د دوه طبقه یی Pigmented cells په واسطه پوښل شوی دی، د Stroma برخه یی د Vessels، Loss connective tissue او Pigment cells څخه جوړه ده.

په Iris کی دوه نوعه عضلات لیدل کیږی:

- **Circular muscle**

یا حلقوی عضلات چی د پاراسمپاتیک اعصابو په واسطه تعصیب شوی وی.

- **Radial muscle**

دا د سمپاتیک اعصابو په واسطه تعصیب شوی دی.

د Pupil قطر 2-4mm پوری دی، په کمه رڼا کی یی قطر زیاتیږی او په زیاته رڼا کی یی قطر کمیږی.

## Retina or Inner coat

د سترگی په 2/3 خلفی برخه کی موقیعت لری، په دی کی اعصاب زیات دی نو د Neural layer په نوم هم یادیږی، خارجی سطحه یی د Choroid سره نښتی ده او داخلی سطحه یی د Hyaloid membrane سره په تماس کی ده.

د خلف څخه قدام ته دری برخی لری:

- **Optic**
- **Ciliary**
- **Iridial**

Optic برخه یی د Nervous tissue لرونکی ده چی د رڼا په مقابل کی حساس دی، د Retina دا برخه له Optic disk څخه د Ciliary body تر خلفی نهایت پوری امتداد لری ددی برخی قدامی کنار موج مانند خط چی د Ora serrata نومیږی جوړوی، په Optic disk کی یوه فرورفتگی وجود لری چی د Physiological cup په نوم یادیږی دا برخه یعنی دغه فرورفتگی Rods او Cons نه لری له دی کبله د رڼا په مقابل کی غیری حساسه ده.

د سترگی گاتی په خلفی نهایت کی د Optic disk څخه 3mm وحشی لوری ته یوه بله فرورفتگی قرار لری چی Macula lutea نومیږی دغه فرورفتگی ژیر رنگ لری د دغه فرورفتگی مرکزی قسمت کی ړ څه ژوروالی شته چی Fovea centralis جوړوی او دا د Retina نازکترینه برخه ده دا برخه یواځی Cones لری.

په Retina کی Receptors لیدل کیږی چی دا اصلاً Photoreceptors دی او په دوه ډوله دی:

- **Rods**

په Dim light یعنی د شپی په لیدلو کی مرسته کوی.

- **Cones**

په زیاته رڼا Bright light یعنی د ورځ په لیدلو کی مرسته کوی.

## Layers of Retina

د هستولوژی له نظره لاندی 10 طبقی لری:

- The Pigmented layer
- Layer of Rods and Cons
- External limiting membrane
- Outer nuclear layer
- Outer plexiform layer
- Inner nuclear layer
- Inner plexiform layer
- Ganglion cell layer
- Nerve fiber layer
- Internal limiting membrane




*Fig. 2. Simple diagram of the organization of the retina.*

## Aqueous Humor

**یوه شفافه مایع ده چی د سترګی په Anterior segment کی قرار لری. دغه Segment د Iris په واسطه په Anterior او Posterior chamber ویشل شوی دی، Aqueous humor په Posterior chamber کی د Ciliary process د شعریه عروقو په واسطه افرازیږی.**

## Lens

**د سترګی عدسیه یوه محدب الطرفین شفافه، غیری وعایی ساختمان دی چی د سترګی د ګاتی د Anterior او Posterior segment ترمنځ قرار لری. د جوړښت له نظره دری برخی لری:**

- **Capsule**
- **Cortex**
- **Nucleus**

**Lens د Suspensory ligament په واسطه په ځوړند شکل ساتل کیږی.**




## Vitreous Body

**دا یوه جیلی مانند بی رنګه شفافه کتله ده چی د سترګی په Posterior segment کی قرار لری.**

## Clinical anatomy

- **Eye is very sensitive organ.**

- **Cornea can be grafted from one person to another hence it is a vascular.**
- **Injury to cornea may cause opacities and inferior with opision.**
- **Over production of aqueous humor or lacks of it drainage or combination of both condition raise intraocular pressure the condition is called glaucoma.**

## Muscle of Eye

- **Intrinsic muscle**
- **Extrinsic muscle**

**Extrinsic عضلات په دوه ډوله دی:**

- **Involuntary muscle**

**دا دوه دانې دی:**

- **Superior tarsal muscle**

**پورتنی څېرمو (Eyelid) د Elevation سبب ګرځی.**

- **Inferior tarsal muscle**

**د ښکتنی څېرمو (Eyelid) یا سترغلی د Depression یا ښکته کیدو سبب کیږی.**

- **Voluntary muscle**
  - **Rectus muscle:**
    **Superior rectus muscle**
    **Inferior rectus muscle**
    **Medial rectus muscle**
    **Lateral rectus muscle**
  - **Oblique muscle:**
    **Superior oblique muscle**
    **Inferior oblique muscle**
  - **Levator palpebral superior muscle**




## Lacrimal Apparatus

**ټول هغه جوړښتونه چی د اوښکو په اطراح او تولید کی رول لری، لاندی برخی لری:**

- Lacrimal glands
- Lacrimal canaliculi
- Lacrimal sac
- Nasolacrimal duct

## Lacrimal gland

دا یوه Serous gland ده او په Lacrimal fossa کی موقعیت لری.

دا د J شکل لری او دوه برخی لری:

- Orbital part

دا یوه غټه او Deeper برخه ده.

- Palpebral part

کومه چی کوچنی او Superficial برخه ده.

## Conjunctival sac

دا اصلآً یو Mucus membrane دی.

The conjunctiva lining deeper surface of eyelid is called palpebral conjunctiva and that lining in front of eye ball is caller bulbar conjunctiva.

The potential space between the palpebral and bulbar conjunctiva is called conjunctival sac.

## Lacrimal Canaliculi

دا دوه برخی لری:

- Vertical part: about 2mm
- Horizontal part: about 8mm

## Lacrimal sac

It is the upper dilated part of nasolacrimal duct. It connect lacrimal canaliculi and nasolacrimal duct, 12mm long and 5mm wide.





## Nasolacrimal duct

**It is a membranous passage 18 mm long begins at the lower end of lacrimal sac and opens into inferior meatus.**

**At the lower end of nasolacrimal duct there is a fold of mucus membrane forming an imperfect valve called hasner valve.**




**LACRIMAL APPARATUS**



# 16th chapter

# Integumentary system

Anatomy of the Skin

Hair
Epidermis
Dermis
Subcutaneous Tissue
Stratum Corneum
Granular Cell Layer
Spinous Cell Layer
Basal Cell Layer
Sebaceous Gland
Erector Pili Muscle
Sweat Gland
Nerves
Hair Follicle
Collagen And Elastin Fibres
Artery
Vein
Fat (Adipose) Tissue
www.greatestlook.com



Mr.18
Kefayatullah.naibamani



# Integumentary system

# پوښوونکی سیستم

**Consist of the skin and accessory structure such as Hairs, Nails and Glands.**

**Integumentary= Cover**

## Skin

## پوستکي

**پوستکی د تماس یوه عضوه ده او په دوه برخو باندی ویشل شوی ده:**

### ■ Glabrous skin

**چی د لاس په ورغوي او د پښی په تلي کی موجود وی ډیر ضخیم وی، ویښتان نه لری( Hair less) وی او Sebaceous gland هم نلری.**

### ■ Hairy skin

**هغه پوستکی دی چی هم ویښتان او هم Sebaceous gland ولری.**

## Layers of the skin

**پوستکی دوه طبقات لری:**

### ■ Dermis

- Connective tissue layer

### ■ Epidermis

- Epithelial tissue layer

**په ځینو کتابونو کی یی Sub cutaneous دریمه طبقه شمیرل کیږی.**



## Epidermis

د پوستکی سطحی طبقه ده چی د سترګو په واسطه یی ګورو او د **Dermis** لپاسه واقع ده، د لاندی ځخه پورته خواته پنځه طبقی لری:

- Stratum Germinatum
- Stratum Malpigi
- Stratum Granulosm
- Stratum Lucidum
- Stratum Corneum

## Cells of Epidermis

- Melanocyte: Producing melanin
- Keratinocyte: Producing keratin
- Langerhans cell: antigen presenting cells
- Merkle cell:



## Dermis

د پوستکی دا برخه له دوو طبقو څخه جوړه ده:

- Upper layer or Papillary layer
- Lower layer or Reticular layer

## Structure of Dermis

په دی طبقه کی Connective tissue زیات لیدل کیږی او همدارنګه لاندی حجرات هم پکی لیدل کیږی:

- Mast cell
- Histocyte
- Fibroblast

همدرانګه د وینی رګونه هم په دی طبقه کی وجود لری او د Arrector pillic muscle لرونکی هم دی.

## Accessory Skin Structure

- Hairs
- Nails
- Glands:
  - Sweat glands
  - Sebaceous glands

## Hairs

Hair are present on the skin covering almost the whole body. The sides where they are not present include the palms, the soles, the ventricle surface and sides of the digits and some parts of the male and female external genitalia.

ویښتان دوه برخی لری:

- Root
- Shaft





ویښتان دری ډولونه لری:

- **Lanugo hair**

نرم او سپین ویښتان دی چی په مخ کی پیدا کیږی بغیر د ږیری، بریتو،وریځو او بانو څخه ټول ویښتان پکی شامل دی.

- **Terminal hair**

د Lanugo hair او Stiff hair څخه بغیر ټول ویښتان پکی شامل دی لکه: د ږیری (Beard)، بریتو (Mustache)، د سر ویښتان او نور دی.

- **Stiff hair**

د وریځو (Eyebrow)، بانه (Eyelash)، د غوږ ویښتان او د پوزی په داخل کی ټول ویښتان پکی دی گروپ کی راځی.

ویښتان د تکثر له مخی دوه مرحلی لری:

- **Anagen phase**

د لویدلو مرحلی ته وایی.

- **Telagen phase**

دا ویښتان د استراحت په حالت کی وی یعنی نه لویږی او 6months څخه تر 6yers پوری عمر لری.

که د سر ویښتان د ورځی 100 دانی ولویږی نو دا یو نارمل حالت دی.



## Sebaceous gland

په ټول بدن کی شته خو د لاس په ورغوی او د پښی په تلی کی نشته.

دا غداوات د Sebum په نوم ماده جوړوی کومه چی له کلسترول او Fatty acids څخه جوړه شوی ده. همدارنګه ددی مادی دنده داده چی ویښتان غوړ ساتی یعنی ویښتانو ته نرموالی یا Flexibility ورکوی او هم Anti fungeal تاثیر لری.

## Sweat gland

دغه غداوات د بدن په ټولو برخو کی شته خو په لاندی ځایونو کی نشته:

- Glans penis
- Clitoris
- Nail bed
- Lips

ددی غداواتو فعالیت د فشار(Stress)، د جنسی فعالیت (Sexual activity)، فزیکی فعالیت او ډار (Fright) په وخت کی زیاتیږی.

دغه غداوات د هستولوژی له نظره دوه برخی لری:

- **Eccrine**

دا د بدن د پوستکی په زیاتره برخو کی شته خو په Glans penis، Clitoris او Nail bed کی نشته.

- **Apocrine**

دا یواځی په Nipple، Areola او Axilla and genital areas کی موجود وی.

## Nail

د ګوتو په Distal phalanx کی په Dorsal surface کی موقیعت لری.

دوه Borders لری:

- Fixed edge
- Free edge

هغه پوستکی چی نوک یی احاطه کړی دی د Nail fold په نوم یادیږی.





هغه پوستکی چی د نوک لاندی موقیعت لری د **Nail bed** په نوم یادیږی.




## Physiology of Integumentary system

- Protection
- Sensation
- Vitamin D production
- Temperature regulation
- Excretion





# 17th chapter

# Endocrine system






Mr.18
Kefayatullah.naibamani


# Endocrine system

ددی سیستم غړی د اندوکراین غداوات دی، دا هغه غداوات دی چې هورمونونه جوړوی او قنات نه لری او خپل افرازات د وینی دوران ته اچوی.

## Glands

**Secretory epithelium is called glands.**

غداوات په دوه ډوله دی:

- **Exocrine**

هغه غداوات دی چې خپل افرازات د اپتیلیم سطحی ته اچوی.

- **Endocrine**

هغه غداواتو ته ویل کیږی چې خپل افرازات مستقیماً دوران ته اچوی.

د اندوکراین غداواتو افرازاتو ته هورمون وایی، هورمون د **Hormose** له کلیمی څخه اخستل شوی چې د **Stimuli** معنا ورکوی.

## Pineal gland

**Location: Bellow splenium of corpus callosum.**

## Macroscopic structure

دغه غداوات د **Body** او **Stalk** یا ساقی درلودونکی دی چې **Body** یې **Conical** یا مخروطی شکل لری او د 5 څخه تر 8 ملی متره اوږودوالی لری.

**Stalk** قداماً یا **Anteriorly** په دوه صفحو ویشل شوی دی:

- **Anterior commissure**
- **Posterior commissure**

## Microscopic structure

دا غده د لاندی شیانو څخه جوړه ده:

- **Pinealocytes**
- **Neuroglial cells**





- Vessels
- Sympathetic fibers

## Pituitary gland

## نخامیه غده

Master gland هم ورته وایی ځکه د بدن اکثره غداوات ددی د کنټرول لاندی دی، همدرانګه Hypophyseal gland هم ورته وایی ځکه چی په Hypophyseal fossa کی موقیعت لری.

**Location: Hypophyseal fossa**

دغه Fossa د Sphenoid هډوکی په Body کی واقع شوی ده.

**Shape: Oval**

**Size: About pea** د ناک په شان

## Parts of Master gland

- Anterior lobe

یا Adenohypophysis هم ورته وایی او د Epithelial cells څخه جوړ شوی دی.

- Posterior lobe

یا Neurohypophysis هم ورته وایی او د Nerves cells څخه جوړ شوی دی.

- Intermediate

ځینی کتابونه وایی چی دا برخه یی په انسانانو کی نه وی.






## Infundibulum

The pituitary stalk also known as the infundibular stalk or fender son funnel or simply the infundibulum.

It is the connection between the hypothalamus and the posterior pituitary.

## Pituitary dwarfism

A young person with deficiency of GH remain small.

## Gigantism

Excess GH before closing of growth palate result in gigantism.

The person abnormally tall.

## Acromegaly

Excess of GH after closing of growth palate result in acromegaly.

Facial feature and hands become abnormally large.

## Thyroid Gland

**Location: Start from C5 to T1 vertebrae.**

**Shape: Shield like.**

د غاړې په قدام او Lateral برخو کې موقیعت لری او د دوو لوبونو څخه جوړه شوی چې یو یې ښی لوب او بل یې چپ لوب دی، دا دواړه لوبونه د Isthmus په واسطه سره وصل دی.

کله کله دریم Lobe هم موجود وی چې کیدای شی هغه له Right یا Left لوب څخه منشاء واخلی، خو اساساً دغه لوبونه د Isthmus څخه منشاء اخلی.

دریم لوب یې د Pyramidal lobe په نوم یادیږی.

د جوړښت له نظره دوه ډوله حجرات لری:

- Follicular cells
- Para follicular cells

ځرنګه چې لوبونه یې Pyramidal شکل لری نو د لاندی برخو درلودونکی دی:

- Apex
- Base

**Surfaces:**

- Lateral
- Medial
- Posterolateral

**Two borders:**

- Anterior
- Posterior

**Enlargement of thyroid gland is known as Goiter.**

**Decrease in function of thyroid glands is called hypothyroidism.**

**Increase in function of thyroid glands is called hyperthyroidism.**








## Para Thyroid Gland

دا دوه جوړی کوچنی غدی دی چی د تایراید د غدی په Posterior border کی موقیعت لری.




## Endocrine part of Pancreas

دغه برخه له Microscopic عناصرو څخه چی ورته Pancreatic islets وایی جوړه شوی ده په دی کی مختلف حجرات موجود دی خو مهم یی په لاندی ډول دی:

- Beta cells
- Langerhans cells
- Alpha cells

## Supra Renal Gland

دی ته Adrenal gland هم ویل کیږی دا د پریتوان شاته د بطن په Posterior جدار کی او د پښتورګو د پاسه موقیعت لری، دوه جوړه یی غداوات دی چی هره غده یی له دوه عمده برخو څخه جوړه ده:

- Medulla
- Cortex

هره غده تقریبآ پنځه ګرامه وزن لری چی ددی وزن له جملی څخه 1/9 برخه یی د غدی Medulla او باقی 8/9 برخه یی د غدی Cortex جوړوی.

Right supra renal غده مثلثی شکل لری چی د Apex او Base درلودونکی دی، همدارنګه دوه Surfaces لری چی د Anterior او Posteriorڅخه عبارت دی.




## Thymus Gland

دغه غده د Manubrium sterni شاته او په Anterior mediastinum کی موقیعت لری.

**Thymus is Primary or central lymphoid organ located in mediastinum.**

**Size:**

- In Birth= 10-15gram
- In Puberty= 30-40gram

د بلوغت څخه وروسته د Thymus په Size او وزن کی تغیر راځی.

Thymus دوه برخی لری:

- Supporting part: (Connective tissue)
- Parenchyma: (Stroma)

## Supporting

په دی کی دری ساختمانونه شامل دی:

- Capsule

دغه غده د یونری Vascularize پوښ په واسطه پوښل شوی چی Capsule ورته وایی.

- Septa

د Capsule څخه داخل ته غده په Lobule ویشل کیږی چی ورته Septa وایی.

- Proper connective tissue

په دی کی Fibroblast، Collagen او نور شیان شامل دی.

## Parenchyma

یا Functional part هم ورته وایی.

دا د دوه ډوله حجراتو څخه جوړه ده:

- Epitehloreticular cell
- T- lymphocyte

د همدی Lymphocyte له کبله د Thymus هر Lobule په دوه برخو ویشل کیږی:

- The outer part (Cortex)
- The inner part (Medulla)



# 18th chapter

# Anatomy of the Ear






Mr.18
Kefayatullah.naibamani


# Ear

# غوږ

غوږ د اناټومی له نظره له دری برخو څخه جوړ شوی دی:

- External ear
- Middle ear
- Internal ear (Inner ear)

## External ear

په دی کی دوه برخی شامل دی:

- Auricle (Pinna)
- External auditory meatus







Right auricle

## Auricle

دا برخه د Cartilage په واسطه جوړه او د Skin په واسطه پوښل شوی ده او د لاندی برخو درلودونکی دی:

- Lower part (Helix)

دغه برخه چې د Connective tissue څخه جوړه شوی او Lobule ورته وایی.

- Under helix (Anti helix)
- Anti-tragus
- Fossa (Concha)

## External Auditory meatus (Canal)

هغه قنات دی چی له Concha څخه شروع او تر Tympanic membrane پوری رسیږی.

تقریباً د 24mm پوری اوږودوالی لری او د غوږ د انتقال وظیفه په غاړه لری.

ددی 2/3 نږدی یا Proximal part چې 16mm کیږی Bony part دی یعنی له هډوکی څخه جوړ شوی دی او 1/3 برخه یا Distal part یی عضروفی یا Cartilaginous دی چې 8mm کیږی.

دغه دواړه برخی د Skin په واسطه پوښل شوی دی، ددی قنات په عضروفی برخه کی Glands لیدل کیږی چې Ceremonial's gland ورته وایی او Wax یا ژیړ رنګه ماده تولیدوی.

دغه Wax غوږ ته د اجنبی موادو لکه ګرد او غبار د ننوتلو څخه مخنیوی کوی.




## Tympanic membrane

یوه شفافه او نازکه پرده ده چې د منځنی او خارجی غوږ ترمنځ واقع شوی ده.

Oblique یا Oval شکل لری.

دغه Membrane دوه سطحی لری:

- **External (Outer) surface: Concave**
- **Internal (Inner) surface: Convex**

دغه پرده له دری طبقاتو څخه ترکیب شوی ده:

- **Cuticular layer**
- **Fibrous layer**
- **Mucus layer**




## Middle Ear

دا د Tympanic cavity یا Tympanum په نوم سره هم یادیږی، په دوه برخو ویشل شوی ده:

- **Proper tympanic cavity**

چی د Tympanic membrane په مقابل کی قرار لری.

- **Epi tympanic cavity**

چی د Tympanic membrane څخه پورته واقع ده.

موقیعت یی:

د Temporal هډوکی په Posterior part کی موقیعت لری او شپږ دیوالونه لری:

- **Superior wall (Tegmen tempani)**
- **Inferior wall (Jugular wall)**
- **Anterior wall (Carotid wall)**
- **Posterior wall**
- **Lateral wall (Membranous wall)**
- **Medial wall (Labyrinth wall)**




منځنی غوږ په عمده ډول د لاندی دریو هډوکو څخه جوړ دی:

- Malleus ځټک
- Incus سندان
- Stapes رکاب

## Malleus

دا ځټک ته ورته شکل لری نو ځکه ورته Hammer هم وایی، تر ټولو غټ او وحشی واقع هډوکی په منځنی غوږ کی دی او لاندی برخی لری:

- Head
- Neck
- Handle
- Process:
  - Anterior
  - Lateral

## Incus

دا سندان ته ورته شکل لری نو ځکه ورته Black smiths ویل کیږی دا د Molar غاښ په شان دی او لاندی برخی لری:

- Body

- Long Process
- Short Process

## Stapes

دا رکاب ته ورته دی نو ځکه ورته Stirrup هم وایی، دا تر ټولو کوچنی او انسی واقع هډوکی د منځنی غوږ دی چی لاندی برخی لری:

- Head
- Neck
- Foot plate
- Limbs:
  - Anterior
  - Posterior

## Joints of Middle Ear

- **Incudomalleolar joint**

  Between incus or malleus bones.

- **Incudostepidial joint**

  Between incus or stapes bones.



## Inner Ear

دا د Labyrinth په نوم هم یادیږی، چی دوه برخی لری:

- Bony labyrinth
- Membranous labyrinth

### Parts of Bony labyrinth

- Cochlea
- Vestibule
- Semicircular canals






- The membranous labyrinth is filled with a clear fluid called endolymph and the space between bony and membranous labyrinth with a fluid called perilymph.

**The bony labyrinth**

Can be divided into three regions respectively known as cochlea involved in hearing, vestibule and semicircular canals involved in balance.




## The cochlea

Is shaped like  a snail shape.
And can bed divided into three portion by a y shape complex membrane.
The base of the y is spiral lamina one branch is the vestibular membrane the other branch is basilar membrane.
The space between vestibular and basilar membranes  is called the cochlear duct.
The complex  membrane labyrinth and filled with endolymph.

If the y is lying on one side.
The space above y is scala vestibule and the space bellow the scala tympany.
Inside the cochlear duct is specialized structure called spiral organ or organ of corti containing specialized sensory cells called hair cells.




## The vestibule

The vestibule is divided into two chambers: utricle and sacculae which are surrounded by end lymph each chamber contain epithelial cells called maculae containing hair cells the tips of microvilli of these cells are embedded in a gelatinous mass weighted by otoliths:particles composed of protein and calcium carbonate called otoliths.



# (References)

# ماخذونه


- **Anatomy first volume (Bones, Joints and Muscles) 2013 by Dr Mohammad Nasir Nasraty.**
- **Anatomy second volume (Systemic anatomy. Digestive, Respiratory, Cardiovascular, urinary, Male and Female reproductive systmes) 2013 by Dr Mohammad Nasir Nasraty.**
- **Anatomy third volume (Nerous system, Sens organs and Endocrine glands) 2014 by Dr Mohammad Nasir Nasraty.**
- **Anatomy of the Nerovus system by Dr Yama Sediqi 2017.**
- **Chaursia BD Human Anatomy Regional and Applied Dissection and Clinical CBS PUBLISHERS AND DISTRABUTERS 4819/XI,Parahlad Street,24 Ansari Road -Daryagani,new dehli-110002(India) Sixth Edition 2014.**
- **Snil. S.Rechard Clinical Anatomy for Medical Students Ninth Editon 2012.**
- **Netter –Frank H. Atlas of Human Anatomy Icon Learning Systems-Teterboro, New jersey Sixth Edition 2014.**
- **Henry-GRAY'S Anatomy Charchill livingstone EDINBURGH, LONDON, MELBOURNE and NEW YORK. Thirty Seventh Edition 1989.**






Mr.18

Kefayatullah.naibamani



